د کتاب نوم: یه زړۀ ګورئے دلته به ګل نۀ سپړے

مصنف: رحمت شاه سائل

وړومبے ایډیشن: ۲۰۱۳ء

شمیر: دوه زره (۲۰۰۰)

ټائټل او کمپوز: رحمت دیوان 03457030719

بیه: ۱۵۰ (یو سل او پنځوس) روپۍ

خورونکی: پښتو ادبی جرګه ملاکنډ

د چاپ ځائے: دانش خپرندویه ټولنه


---


د سائل فون نمبرونه:

0300-9051925

0346-9302380


درکونه:

1. یونیورسټی بک ایجنسی خیبر بازار، پېښور.
2. پښتو ادبی جرګه ملاکنډ.
3. سلیم جالوان، حمیدالله حمید ، نوید جمال، افتخار مارکیټ درګئ بازار، ملاکنډ ایجنسی.

؟

په دے قیامت کښې دَ قیامت خیالونو سره
خدایه په کومه کوځه لاړ شمه، کوڅے ورانے دی

په دومره خلقو کښې دا دومره تنهائی ولے ده؟
لکه چه زړونه وران دی، ټولے تماشے ورانے دی

# تړون

## دَ ډاکټر اسرار په نوم

زۀ دَ خپل دے کتاب، دَ خوګ روح د خوبونو نغمے
ستا روح او ستا وجدان او ستا دَ مینے خیال ته سپارم
لکه غریبه پښتنه پیغله دهقانه پیغله
دَ سور پیزوان ارمان هر اوړی او هر کال ته سپارم

هر کال هر اوړے چه راځی نو وی سوکړے وهلے
زمونږ چیتر جوړ کړے فصل رانه اودوړوی
زمونږ دَ خاورو ختو جوړ دَ ارمانونو بُتکی
زمونږ دَ خیال مخکښ دلئے دلئے راغورزوی

بیا مو دَ خیال "درخو" دَ سور پیزوان دَ خیال لیونئے
په درمندونو کښ بنګړو له کاریزے زبوی
کاریزے خرخے کړی بنګړی پریږدی اوړۀ پرے واخلی
کال په کال مونږ لوبوی دغسے واړۀ غولوی

نو یه زما اسراره! ستا روح ته سلام کوومه
خو زۀ چه ستا نوم ته دا سپور غوندے کتاب سپارم
ځان سره وایمه چه تا او کنه ځان غولووم
چه ستا ارمان له او کۀ خپل ارمان له ګوتے شمارم

خو یو گمان مِ دَ یقین غوندے پہ زړۀ کښې بل شی
چہ کۀ نن نۀ وی نو صبا لہ بہ دا ورکہ پښتو
ھم دَ قانون ژبہ وی، ھم بہ دَ دفتر ژبہ وی
ھم بہ دَ نمر ژبہ وی، ھم بہ دَ سحر ژبہ وی
ھم بہ دَ خوار ژبہ وی، ھم بہ دَ افسر ژبہ وی
دَ خوګو زړونو پہ پرھر کښې بہ دَ کر ژبہ وی

زما او ستا خاورہ بہ ګل پہ منجرہ وی صبا
ھر مسافر ځلمے بہ راشی پہ وطن کښې بہ وی
سپور وربلونہ بہ سمسور سمسور ګلونہ ښکاری
ګودر، اختر، سپرلے، پہ ھر تن او بدن کښې بہ وی

پہ ھر طرف بہ دَ رنګونو بارانونہ کیږی
مینہ بہ ساہ واخلی او زړونو تہ بہ زړونہ کیږی
دَ ترنم او تبسم دَ تصویرونو نہ بہ
دَ مینے خوب تہ دَ خیالونو الھامونہ کیږی

ځکہ خو زۀ دَ خپل کتاب تړون زما اسرارہ!
ستا دَ پښتو پښتو خیالونو پہ نامۀ کومہ
ستا دَ قام دَ ھر بچی ارمان لہ ژبہ ورکړم
نو ستا دَ سترو سترګو غیږ کښې بہ دمہ کومہ

❀ ❀ ❀

نوټ: ما په دوؤ بورډونو د يو راهنما تصوير په يو بازار کښ اوليدو.
يو بورډ دَ يوے پارټئے وؤ دويم بورډ دَ بلے پارټئے. دا سړے په هغے بورډ کښ هم راهنما وؤ او په دے بورډ کښ هم راهنما.
د مخکښ پارټئے بوډر والا لا د دۀ تصوير نه وؤ وران کړے چه نوے پارټئے والا ئے د هغے نه غټ تصوير جوړ کړو او مخامخ ئے ورته اولګوؤ. نن صبا دَ بورډونو سياست په عروج دے او بورډ جوړول دَ هر چا دَ وس خبره نۀ ده دَ جنډے ځائے بورډ اونيوؤ او دَ منشور ځائے نمائش.

# بورډ

دا راهنما سړے په يو بازار کښ
په دوؤ بورډونو ښکاريدو خنديدو

سنجيدګی ئے وه په شکل خورۀ
داد ئے دَ سترګو څخيدو خنديدو

داد دَ دروغژن وؤ او کۀ دغه سړے
چه په ولاړۀ کښ هم تلو خنديدو

یو بورډ دَ بل چا وؤ، بل بورډ دَ بل چا
نه ویریدو نه شرمیدو خندیدو

دا دوه بورډونه مخامخ یو بل ته
مونږ ته ټکی که نظریات ښائی

دا غوړے غوړے خنده رویه شونډے
مونږ ته ښادی، او که خیرات ښائی

په دے بورډ هم په هغے هم راهنما!!
خدایه دا څنګ راهنمایان راګډ شو

دلته هم غټ هلته د دے نه هم غټ
څه عجیبه پهلوانان راګډ شو

دۀ ته دِ خیر وی او د ده دَ مخه
خدایه زمَا دَ وطن خلکو ته خیر

خیرو خیرات دِ وی مدام زنده باد
حجاب خو سر اوخوږ څکلکو ته خیر

❀❀❀

کــه اوچ ســپیره خــزان وی کــه گلونــه دَ شرشــم وی
موســم خــو چــه هــر څــه وی بــې جانانــه جهــنم وی

فن داسې چه حسین وی، پکښې زړهٔ وی، پکښې روح وی
چه زړهٔ وی، چه مئین وی، پکښې درد وی پکښې غم وی
فنکار غواړی تراشل غواړی، دَ خیال دَ روح په گوتو
دَ هــر شــډل بــډل کــانړی دننــه یــو صــنم وی
زمــا دَ بنــړو اوښــکې پــه گــلاب شــونډو کښې واخلــی
چــه دلتــه وی نــو اوښــکې وی، چــه هلتــه وی شــبنم وی
ژونــدون خپلــه دَ ځــان ســره راوړې هنگــامې دی
پــه یــو وخــت بــه سندرې وی پــه بــل وخــت بــه مــاتم وی
اے زړهٔ حُســن ســپرلی هــم وی، خــو دشــت او بیابــان هــم
دَ گــل ســورې بــه هــم وی، دَ لمبې ســورې بــه هــم وی
غمونــه دَ جانــان لــوئې، کــه واړهٔ وی ســړې وژنــی
نــه یــو دَ یــو نــه کــم وی، او نــه بــل دَ بــل نــه کــم وی

چــه ســتوری او ســپوږمئې ســره همــدم او هــم قــدم وی
**ســائله** نــو دَ تــورې شــپې پــه غــولی بــه مــاتم وی

✿✿✿

دا غوټئے خاندی هم حجاب هم لری، ځکه چه دا حجاب د دے خاورے دے
دا ګلاب وړل دی دَ جانان وربل له، ځکه چه دا ګلاب د دے خاورے هم دے

په دے کښې مونږ یو او زمونږ دَ ژوند زرګونه لیونئے قصے دی
دا کتاب ورک نه کړئے دَ ژوند لیونو، ځکه چه دا کتاب د دے خاورے دے

دے به کوی مونږ ته زمونږ دَ لیونو محبتونو لازاواله قصے
دغه ساز خوند کوی په دے حجره کښې، ځکه چه دا رباب د دے خاورے دے

څوک ئے روښان ګڼړی او څوک تاریکے، خدایه خو چه زه ئے څنګه نه پیژنم
زه کۀئے نه پیژنم هم زما زړۀ ماته وائی، د دے سړی خطاب د دے خاورے دے

تاسو بے شکه دَ دانش دَ مدرسو نه فارغ شوی دانش مند خلک ئیے
زما که زړۀ یوه زره هم دے خو، کریاب دد ے، دریاب د دے خاورے دے

دا پښتونخوا ده دَ پښتون وطن، پښتون وطن، ژوندون وطن دے
دلته وړوکے ثواب لویه ګناه یو برابر، ځکه چه دا ثواب د دے خاورے دے

بربنډه ول به غواړی، تول په تول ه، هر کردار دد ے افسانے
**سائله** مونږ ئے په زور زیر پویه کړو، دا وینے وینے باب د دے خاورے دے

✿✿✿

ما دِ لیونے تصویر پہ خپل زړۀ کښں راوړے دے
ستا دَ شونډو اور مِ دَ غزل زړۀ کښں راوړے دے

مالہ مِ دَ زړۀ جونګړه تل رنړا رنړا ساتی
ستا دَ وریځو خال مِ دا سے بل زړۀ کښں راوړے دے

منم دا بہ نہ وی ستا دَ شونډو دَ مسکا پہ رنګ
تا دَ زړۀ دَ وینو رنګ دَ ګل زړۀ کښں راوړے دے

ستا سترګے رښتونے دی خو ستا نہ چہ واپس شمہ
هر ځل مِ دَ ځان سره یو غل زړۀ کښں راوړے دے

خدائے خبر چہ دغہ دار زما پہ نصیب شتہ کنہ
ما مرئے لہ ستا دَ زلفو ول زړۀ کښں راوړے دے

قتل ئے کہ خیر دے خو دَ مینے دَ وعدے نہ پس
ستا **سائل** دَ ځان سره مقتل زړۀ کښں راوړے دے

❀❀❀

❁

دا لـــر و بـــر دِ زیـــروبم کـــه ســـاز تـــرِ پیـــدا کـــۀ
دا زړونـــه چـــه درزیـــږی یـــو آواز تـــرِ پیـــدا کـــۀ

پـه سـترگو کښ بـه خـو گرځـوے سـتړی پیغامونـه
لمـبے تـرِ کـه پیـدا سـوز و گـداز تـرِ پیـدا کـۀ
احســاس دَ خــپلے میــنے او دَ خــپلے ویــنے راؤړۀ
خــو دی عــروج تــه اورســوه نــاز تــرِ پیــدا کــۀ
کوشـیر کـۀ مـاتے گـوتے، مـاتے مـتہے دَ فکرونـو
وزرے دَ خیـــالونو دَ پـــرواز تـــرِ پیـــدا کـــۀ
تــر شــو بــه مــونږ کــوؤ تجارتونــه دَ رازونــو
همــراز خپــل اولســونه کــه او راز تــرِ پیــدا کــۀ
بــے مخــه بــے مروتــه شــو بــلا جهــان دَ میــنے
تــوتہے ســترگے راتــولے کــه اعــزاز تــرِ پیــدا کــۀ

دروغ نشته که شته نو دَ رشتیا وجود ترِ جوړ دے
**ســائله** انجـام مـه منـه اغـاز تـرِ پیـدا کـۀ

❁❁❁

# احساس

خومره دَ لوئے وطن سړے ئے دَ لوئے قام سړے ئے
خو څه په لوګه تنده ژوند کړے څه ګمنام سړے ئے

ښکلا ئے ته دَ ژوند ، خو ژوند خو ستا نه کرکه کوی
نه خو دِ ځان پکښ بدنام کۀ، نه نیک نام سړے ئے

بل ته په خپو کښ پروت پیښے دَ شادوګانو کوے
ما خو آزاد هم کړے خو ته په زړۀ غلام سړے ئے

❀❀❀

# مشرق او مغرب

دَ هجر تګے دے، په خپلو اوښکو موړ تصویر دے
دَ ښتنے مینے تصویر دَ دړده جوړ تصویر دے

دلته دَ فن دَ تصویر ژبه وی دَ مینے ژبه
دلته دَ حسن حاصل عشق دَ عشق نچوړ تصویر دے

دنیا دِ مونږ زاوال زدۀ مینو ته نه پسخوی
دا خومره تود تصویر دے، دغه خومره سوړ تصویر دے

❀❀❀

لکه تصویر چه د پوره جوړ کړمه وران د کړم
قاتل دَ مینې دَ خوبونو دَ جانان د کړم

لکه شبنم ټوله شپه رو رو پټا اووریدم
ګلابه داسې خند د راکړې چه باران د کړم
داسې په منده زړهٔ ته راغلې تر په منده لاړې
په کیفیت کښې دومره زر بدلون، حیران د کړم؟
هسې خو اولوستم زرګونو په لکونو خلکو
خو هیچا اونه لوستم داسې یو داستان د کړم
لکه تازه پرهر د درد درد شریکې کړمه
لکه ریدې د دَ زړهٔ داغ کړمه ارمان د کړم
حسن او مینه خو وجود لکه خوشبو نه لری
خدایه دا څه دَ نالیدلو ترجمان د کړم
لکه زما ستا هم زیړ رنګ په پسرلی کښې خوخ وی
خیر دې که تکه زیړه پاڼه دَ خزان د کړم

ستا دَ منڼې جوګه ټکی **سائل** اونه موندل
په ټول جهان د کړمه خور داسې جهان د کړم

زۀ یم په ژوند کښې ژوند ته، ژوند په ما کښې ماته حیران
دنیا به ماته وی حیرانه زۀ دنیا ته حیران

ماته چه څوک هم مسیحا ښکاره شی غوښ غوښ مِ کړی
یو مسیحا نه کړم حیران، یم مسیحا ته حیران

هره سودا وائی ما واخلهٔ ما سودا واخلی
سودا به ماته وی حیرانه زۀ سودا ته حیران

خلک دَ بل کلی بیګا او صبا نه پیژنی
زۀ یم دَ خپل کلی بیګا ته او صبا ته حیران

باطن دَ هر چا دے ښکاره، ظاهر دَ هر چا دے پټ
څومره کمال ته رسیدلے، یم ریا ته حیران

هغه تجویز ستا دَ وژلو پیش کړو زور ئے ورکړو
**سائله** زۀ یم ستا د لاسو دے پړقا ته حیران

❀❀❀

لکه شبنم مِ یار دَ زړهٔ په ګلاب لوبے کوی
اور ترے وانخلی دَ لمبو په کتاب لوبے کوی

د آئینے نه چه بهر شی، شی په زړهٔ دننه
لَکه په لفظ کښ دَ مفهوم په حجاب لوبے کوی
دَ محبت دَ رواج رسم ته هم ژوند ووبښی
په دائره کښ دَ ګناه او ثواب لوبے کوی
دَ سترګو هر سوال ته جواب، په سترګو شی وئیلے
خو جواب دا سے چه په سوال و جواب لوبے کوی
څنګه مِ زر زر ټنګولے شی دَ زړهٔ تارونه
څنګه مِ زر زر دَ زړګی په رباب لوبے کوی
تربیت غواړی دَ ترتیب دَ مینے هر یو رسم
هغه ماشوم دَ محبت په نصاب لوبے کوی

ستا په آواز پسے په دشتو په غرمو دے روان
تندے اخستے دے **سائل** په سراب لوبے کوی
یکم فروری ۲۰۱۲ء پیښور

تـه کـه پـه رشـتیا جانـان زمـا ئـے ماتـه اوایـه
دا بـه راتـه نـن خامخـا وائـے ماتـه اوایـه

تالـه کـه ړومبـے ګـل دَ ړومبی پسـرلی راوړمـه
ګـل کـه زمـا سـوے رنګ به ستائے ماته اوایه

غـواړم چه دِ سترګو تـه هم زده کړمه پښتو ژبه
تـه بـه پـرے ړومبـے تکـے څـه وائـے ماتـه اوایـه

وائـی چـه وعـده او توبـه دواړهٔ ماتیدونکی وی
تـهٔ کـه پښـتنه دَ پښـتونخوا ئـے ماتـه اوایـه

ما خو درله خپل زړهٔ دَ یو سوال سره راوړے دے
تـهٔ کـه زمـا مینـه پـه رشـتیا ئـے ماتـه اوایـه

زۀ چه دِ میلمه کړمه دَ خپل زړۀ په جونګړه کښې
زۀ به څه یم تۀ خو به باچا ئے ماته اوایه

زۀ خپله ګواه یم چه ستا مړو سترګو وژلے یم
تۀ که خبر نه ئے بے ګناه ئے ماته اوایه

ولے دِ رنګ والوزی دَ مخ نه دَ دیدن په وخت
ولے په دیدن کښې وار خطا ئے ماته اوایه

راغلے دَ **سائل** اوښکے نن ستا دَ تبسم په مخ
دا تۀ په خندا که په ژړا ئے ماته اوایه

۲۸م جون ۲۰۱۱ء پیښور

چہ وطن خپل نہ وی آسمان پردے وی نمر پردے وی
چہ خاورہ خپلہ نہ وی، شپہ پردئے سحر پردے وی

ځان دَ سړی نہ وی پردے، سړے دَ ځانہ پردے
مازیګری پردی پردی وی مازیګر پردے وی

دا چہ مو سر او تندے اونہ لړی در پہ در یو
ښنګہ بہ اولړی چہ سر پردے وی در پردے وی

خوب پکښ ښنګہ اوکړی، خوب بہ پکښ څہ اوینی
دَ چا چہ کټ لکہ دَ شپے دَ مسافر پردے وی

مونږہ حساس خلک، دَ څہ عجب مسلک خلک یو
دړد ئے زمونږ پہ زړۀ تیریږی او پرهر پردے وی

دَ څہ عجب آسمان دَ لاندے زندګی تیروؤ
روژے زمونږہ پہ نصیب کښ وی اختر پردے وی

وصـــال دَ نـــورو وی دَ هجـــر زهـــر مـــونږه ګوتـــو
دلـــداری مـــونږ تـــه را پـــه برښـــه وی دلبـــر پـــردے وی

مینـــه خـــو لوبـــه ده پـــه خپـــل ســـر دَ بـــازئے تړلـــو
دَ مینے خیال به پکښ څه ځائے شی چه سر پردے وی

پښـــتانهٔ وائـــی کـــه غـــر لـــوئے وی پـــه ســـر لاره لـــری
لار به پرے څنګه خپله جوړه کړو چه غر پردے وی

چـــه وی پـــردئے، دَ هنرونـــو دَ تخلیـــق ســـرچینے
پـــه خپلـــو ګوتـــو کښ هنـــر پـــردے نظـــر پـــردے وی

خیال که ئے لوړ وی، دَ هستئے مورال ئے نه لوړیږی
دَ چـــا چـــه زهـــن آزاد نـــه وی، نـــو جـــوهر پـــردے وی

ســـړے بـــه اوغـــزوی خـــپے، دَ خپـــل ســـادره ســـره
خو خپے به څهٔ د چا، شی خپلے چه سادر پردے وی

کور که وړوکے وی، که لوئے وی، چه وی خپل نو کور وی
خو دَ کوم کور نوم چه کنډر شی نو کنډر پردے وی

جنګ په پردی مسلک پردئے نظریه نه دے په کار
سړے به څه نر او بادر شی چه سنګر پردے وی

په ډکيدو په تشيدو نه سړے کيږی سړے
سړے دَ خر نه اخوا څۀ وی چه اخور پردے وی

چه ناز پرے اوکړے يو وړوکے تولے هم پوره دے
ناز په لښکر هم ممکن نه دے چه لښکر پردے وی

اشر غوبل هم وی دَ بل خو ښکاری خپل سړی ته
په ځان تاوان وی چه غوبل پردے اشر پردے وی

ستم ئے هم وی دَ ستائلو خو چه خپل جانان وی
**سائله** زړۀ هغلته چوی چه ستم گر پردے وی

۲م فروری، ۲۰۱۲ء پېښور

ستا په تصویر کښ ما ، زما تصویر کښ تا ژړوی
دا مصـور څـوک دے، چـه تـا ژړوی مـا ژړوی

دا خلـک خپلـو فـن پـارو لـه هـم سزا ورکـوی
دا خلـک خپلـو تصـویرونو تـه دنیـا ژړوی

کۀ محبت نـه وے سیوا بـه دَ وحشت نـه څۀ وۀ
څـو بـه دنیـا مونګـه دَ میـنے پـه ګنـاه ژړوی

دلتـه کښ هیڅـا غـم دَ دړد پـه بیـه هـم رانـه کۀ
مـا دا بـازار ژړوی، مـا دغـه سـودا ژړوی

رامبیل چامبیل به یو، خو یو به دَ ګلاب نوکران
دا تصـور بـه مـو ټـول عمـر پـه بیـا بیـا ژړوی

فطرت په څومره تـوازن، دَ غـم تهذیب عـام کـوی
ګـل خنـدوی خـو پـه شـبنم دَ ګـل خنـدا ژړوی

تویوی هره شپه رنړے اوښکے دَ ستورو په شان
هره ورځ هره شپه سپوږمئ خپله رنړا ژړوی

توتے توتے آئینے ستا دَ تصویرونو دنیا
بیګا صبا به دِ ټول عمر په ژړا ژړوی

لفظ چه دَ فن نه وی بهر **سائله** تا لټوی
لفظ چه په فن کښې شی روحونه په خندا ژړوی

# سندره

دلتــه ســوزیږی میــنـے
دلتــه قتلیــږی میــنـے
یــه زړهٔ ګــورئـے دلتــه بــه ګــل نــه ســپړے

دلتــه ســیلئـے دَ خــزان
الوزی هر ځائـے دَ خندان
یــه زړهٔ ګــورئـے دلتــه بــه ګــل نــه ســپړے

دلتــه کبنې ګلونــه دَ خوبونــو پــه ارمــان اوســی
دلتــه هــر طــرف تــه دَ ګلونــو قــاتلان اوســی

دلته د ے هر تن لیونے
هر ګل او ګلشن لیونے
یــه زړهٔ ګــورئـے دلتــه بــه ګــل نــه ســپړے

دلتــه دَ ارزو قتـــل او دلتـــه دَ ارمـــان قتـــل
دلتـه دے دَ هـر حسـرت، دَ هـر څـۀ نـه اسان قتـل

دلته وی انسان لیونے
دلته وی وجدان لیونے
یـه زړۀ ګـورئے دلتـه بـه ګـل نـه سـپړے

دا دنیـــا دنیـــا نـــه ده ځنګـــل دَ انســـانانو دے
مونږ پکښ سلګئ خورو راج و تـاج دَ ظالمانو دے

یـــه زړۀ نادانـــه زمـــا
یـــه زړۀ جانانـــه زمـــا
یـه زړۀ ګـورئے دلتـه بـه ګـل نـه سـپړے

زړۀ خـو زنـدګـی غـواړی **سـائله** درزیـدۀ غـواړی
زړۀ خـو لکـه ګـل وی خنـدیـدۀ او غـوړیـدۀ غـواړی

دا چل ورته مه ښایه چه
داسے ورتـه مـه وایـه چـه
یـه زړۀ ګـورئے دلتـه بـه ګـل نـه سـپړے

❁❁❁

# یادگیرنه

مونږ دَ منصور دَ جنون تا دَ ملا لار اونیوه
تا دَ ثواب مونږ دَ الفت دَ گناه لار اونیوه

خلک خو اوس هم لارے نیسی خو پردو خلکو ته
دا تا په کومه خوشحالئے کښ زما لار اونیوه

# مقدمه

دَ نادانے پښتونخوا دَ غرونو اوښکے
یا چینے وی او یا بیا لکه سیندونه

کال په کال زمونږ نه وړی زمونږ کورونه
مونږ پریږدی سیرابوی پردی دشتونه

❀❀❀

# دَ پښتونخوا سندره

نور به دَ داغ په شغله چل دَ الوتو زده کوي
دَ پښتونخوا ښکليه + دَ پښتونخوا ښکليه

نوره به زړۀ ته فلسفه دَ ليونو زده کوي
دَ پښتونخوا ښکليه + دَ پښتونخوا ښکليه

دَ پښتونخوا جماله ته دَ پښتونخوا دَ غرونو
هم ئې غرور هم جلال

دَ پښتنو زړګيه ته دَ پښتنو سرونو
هم ئې غرور هم جلال

په پښتنو زړونو به چل دَ دريدو زده کوي
دَ پښتونخوا ښکليه + دَ پښتونخوا ښکليه

پښتونخوا تاته مبارک شه لکه غيږ دَ ژوندون
اوس پرې کوه نازونه

چه درنه هیر نه شی د دغے قصے نن او پرون
اوس پرے کوه نازونه

لکه دَ گل به زړۀ چاؤدون په خندیدو زده کوے
دَ پښتونخوا ښکلیه + دَ پښتونخوا ښکلیه

دا خړے خاورے به په خپل سر بادول غواړی
دَ دے وطن په خاطر

دَ کانړی کانړی نه به سرۀ زر جوړول غواړی
دَ دے وطن په خاطر

دَ ژوند دَ دار په سر به چل دَ گډیدو زده کوے
دَ پښتونخوا ښکلیه + دَ پښتونخوا ښکلیه

دَ پښتونخوا همه رنگونه او گلونه ستا دی
راشه ملیار ئے شه تۀ

دَ دے وطن واړۀ پُرکیفه موسمونه ستا دی
راشه ملیار ئے شه تۀ

لکه دَ ګل به ژوند په خوکو دَ ازغو زده کوے
دَ پښتونخوا ښکلیه + دَ پښتونخوا ښکلیه

په دے وطن کښ به ښائست او مینه ګل او ګلشن
لکه سپرلے عام کوے

په زندګئے کښ به تصویر او تصور دَ وطن
لکه سپرلے عام کوے

خیال لمبول به دَ سپوږمئ په پلوشو زده کوے
دَ پښتونخوا ښکلیه + دَ پښتونخوا ښکلیه

د دے جهان مخکښ به تهٔ هم ځان ته سیال وائے
په هسکه هسکه غرئے

خپل پسرلی به په سندرو دَ **سائل** ستائے
په هسکه هسکه غرئے

دَ جانان سترګو ته به هم ژبه پښتو زده کوے
دَ پښتونخوا ښکلیه + دَ پښتونخوا ښکلیه

❁❁❁

# عزیر جان دَ مانیرئے

څه ګرځه لیونے لیونے ورانه لیونیه
خو دا کوڅے به نه پریدے جانانه لیونیه
په دے هوښیارو خلکو کښې نادانه لیونیه
مونږ ټول رالیوني کړې عزیر جانه لیونیه

دَ مینے دَ مسلک او دَ مکتب دَ جنون اورهٔ
مونږ هم درسره خلاص کړې دَ ګریوانه لیونیه
مونږ ټول دَ فکر و فن دَ تصویرونو په خیال پوئے کړې
مونږ ټولو ته کړې دا ګرانه اسانه لیونیه

هم دغه سودا ستا غوندے سرې په سر کښې شه ده
راګرځه مه دَ مینے دَ سودا نه لیونیه
کړنګیږه او شړنګیږه او غګیږه روان اوسه
جرس وې مدام مخکښې دَ کاروانه لیونیه

دَ ډیرو کانړو بوټو او ازغو نه تیریدل دی
ګامونه راچاپیر کۀ دَ صحرا نه لیونیه
دَ مینے او وفا ننګ و غیرت مدعی تۀ ئے
نیمګړے دے ژوند ژواک بغیر لتا نه لیونیه

تۀ تخم دَ تصویر ئے، ستا شعور دَ ګلو کر دے
زما دَ هر تکل دَ زړۀ ارمانه لیونیه

زما په زړۀ کښې قید خیالونه کۀ آزاد راشه
فنکار ارمانه لکه ګل دَ یار دَ یاد راشه

دَ څېرکې څېرکې دړد قصه څنګه کاغذ ته کړمه
زیات دَ پرهر نه مِ قلم کوی فریاد راشه

راشه خالونو له ترِ ترمه ترمه وینه یوسه
راشه تندے پخپله مات کۀ دَ فرهاد راشه

پتا دَ طمے په قیمت محبت نه خرڅوؤم
نه مِ دَ داد هوس شته نه غم دَ بائیداد راشه

بهر دَ زړۀ نه بلا لرے لرے اوګرځیدم
ما مِ دَ خپل زړۀ په انګنړ کښې کۀ آباد راشه

**سائل** به تا آخر په څومره زیارتونو غواړی
تۀ مِ زړګے، تۀ مِ جانان، تۀ مِ مراد راشه

# سندره

چرته اودی، چرته کښې سرۀ چرته کښې زیړ ګلونه
دَ پښتونخوا غاړے له ورړم دَ باجوړ ګلونه

زۀ دَ رنګونو لیونے زۀ دَ ګلونو مئین
ماله ئے تل راکړے ژوند ما دِ کړی مړ ګلونه

لکه امیل، لکه په زلفو کښې قطار دَ جانان
چرته په دشتو کښې موسکی چرته په زوړ ګلونه

چه شی سپرلے تول ښائستونه په مونږ وروی
مونږ کړی دَ خپلو لوړو غرونو په شان لوړ ګلونه

څم دَ بولان، او پیښور په ښکلو زیرے کوؤم
مونږ ته کړۀ خدائے دَ باجوړ ښکلی په پړ ګلونه

لکــه ســازونه دَ مرغــو پــه آوازونــو کښې شــول
دَ فطرتونـــو پـــه رنګونـــو کښې ککـــړ ګلونـــه

خدایـه بـاران اوکـړے پـه دے وطـن دَ رنـګ او رنـړا
چه دشت په دشت شی، لوړ په لوړ او خوړ په خوړ ګلونه

مــونږ پــه خـالونو دَ لالونــو جــوارئے کــړی دی
دَ ازغــو ډک صـحی، خــودی زمــونږ دَ وړ ګلونــه

سپرلی به راشی څرګے څانګے څانګے به شی
**ســائل** کرلــی دَ جانــان دَ زړهٔ پــه تــړ ګلونــه
۲۰۰۹ء

# فیصله

کرله وۀ دهقان روان
وکړیدو بر آسمان
دۀ ورته براوکتل
دا ئے ورته اووئیل
این کوے کۀ پین کوے
دا پتے به شین کوے
دا سے زۀ هم وایمه
ځوئے دَ پښتونخوا یمه
دلته کښ ثوک مری کۀ چوی
چوی دِ دَ چا زړۀ کۀ چوی
خاوره زما خاوره ده
نوم به خامخا لری
دے چه دَ پښتون وطن
نوم به پښتونخوا لری

❀❀❀

# زۀ لیونے

خدایه په یو تن بدن کښ پروت جدا جدا یمه
یم شهید خو زۀ شهید دَ کومے کربلا یمه

څۀ په چل او ول مِ خلک پرِ کړی څۀ بے چله مړ
زۀ لیونے څۀ دَ لیونئے خاورے پیدا یمه

❀❀❀

# تول پارسنګ

داسے جانان چه خوشبوئ ئے دَ الفته راځی
داسے جانان چه زما خواله بے منته راځی

په دروغژنه لوئئے ډیر خلک په بره لاړ شی
څوک چه وی درون تَلۀ ئے بره نه ځی ښکته راځی

❀❀❀

اولس جانان کۀ نو دَ تول اولس جانان به شے
کۀ لږ پخپله زمکه اودریدے آسمان به شے

په تنهائی کښې وې بے دره بے دیاره سړے
دَ زړونو کور کلی له راشه نو ودان به شے

دَ ژوند په شور کښې ځنې ځنې آوازونه اوره
کۀ ناست ئے پابسے کۀ پاڅیدے روان به شے

ستوری خالونه په تندو کۀ دَ وطن دَ ښکلو
تیارے دِ نشی پتولے چراغان به شے

دَ پردی سوری نه په خپلو سرو غرمو کښې ښه ئے
دلته به ډیر گران ئے کۀ هلته شوے ارزان به شے

دَ خپل پرهر دَ درد دَ سرو ګلونو ژبه زده کۀ
ګل به پخپله شي دَ ګل دَ خاندان به شي

ماتول هيڅ نه دي مشکل دَ نفرتونو پولې
دَ مينې لار واخلۀ يقين به شي ايمان به شي

بيا به تمبيږي دَ پلکونو ګزارونه درنه
دَ ستم ګرو مينه اوکه نو سندان به شي

يا بنجارے شه يا ملنګ دَ پښتنو دَ کوڅو
**سائله** دا اعزاز حاصل کۀ شاه جهان به شي

۱۵م فروري ۲۰۱۲ء پېښور

لکه جانان دَ خپل وطن جمال په زړونو ګرځوؤ
لکه تصویر ئے دَ مخ خط او خال په زړونو ګرځوؤ

مونږ دَ جنون په دشتو ورک دَ محبت دوه لیونی
دَ خپل سپرلی خپلو ګلونو خیال په زړونو ګرځوؤ
مونږ به پرے ځانګو دار ته رسی کۀ دیدار ته دا قصه
دَ لیونو لونګینونو تال په زړونو ګرځوو
په چړ روانے دَ چینو سندرے ځنګ شو هیرولے
د دے چینو چنار چنار جلال په زړونو ګرځوؤ
ټکوروؤ پرے تل سوری سوری زړګی په وینو سرۀ
لکه دسمالے دَ جانان دسمال په زړونو ګرځوؤ
مونږه په هیره هم یو بل هیر کړے نه دے چرے
لکه ارمان دَ یو او بل وصال په زړونو ګرځوؤ

ځی دَ عروج په طرف تلونکی دی **سائل** او جانان
دَ لازاوالہ رونړ تخلیق کمال په زړونو ګرځوؤ

۞۞۞

دَ گل په شونډو چه دَ اوښکو باران نه پیژني
سپرلے څۀ پیژني چه سوے دَ خزان نه پیژني

څوک چه دَ ژوند او دَ جانان غم په نشو تیروی
دا سړے هر څوک چه دے ژوند او جانان نه پیژني

یو تصور دے چه تصویر ئے چا جوړ کړے نه دے
څوک ئے تصویر کړی چه وجود دَ ارمان نه پیژني

دا کوځے دا سے دی چه ورک ورک ګوټ پیرونه لری
دلته کښې هر څوک هر څۀ پیژني ځان نه پیژني

دلته یقین او ګمان یو بل ته دوه مخ آئینے
دلته چه تیر او خوری یقین او ګمان نه پیژني

دلته ماشوم شی سړے، جوړ ورانوی، وران جوړوی
دلتــه چــه راشــی ســړے وران اوودان نــه پیژنــی

دلتــه ســینے شــی ســمندر پــکښ دنیــا ډوبــوی
دلتــه کښ هیخــوک هــم ولاړ او روان نــه پیژنــی

**ســائله** ســتا دَ شــعر بنــړ لکــه مســکن دَ بنــکلو
خوبــان خــو هــر څــوک خوښــوی خــو خوبــان نــه پیژنــی

**ســـائله** ســـتا دَ پرهرونـــو وارثـــان دردونـــه
خلــک تــا پیژنــی خــو ســتا وارثــان نــه پیژنــی

ستـــــــــرگے وروا ړوه، راوا ړوه روان ســــــــپرلے
جانانـــه اودروه پـــه زور جانـــان جانـــان ســـپرلے

دوه تماشے دِ شی پـه دے بنړو زوړنـد ے اوښکے
خدایـه راښکے کړے پـه شبو بـاران بـاران ســپرلے
دَ خپلــو ســترگو پــه خمــار کښ مِ رااونغــاړهٔ زړهٔ
چـه زهٔ ارمــان شــم دَ ســپرلی زمــا ارمــان ســپرلے
دا یـو موسم دے چـه هر چا غوښـتے دَ دے دَ پـاره
چه غوټئے پیغلے کړی او هر گلاب کړی ځوان سپرلے
خوشبو بـه څنگـه څوک پـه گـل کښ بندیوانـه ساتی
څوک بـه کړی څنگـه پـه فطرت کښ بندیوان سپرلے
درتـه قسم خورم چه ما ځان لـه سپرلی غوښتی نـه دی
تـا لـه مِ غوښـتے سـتا دَ گـل شونډو پـه شـان سپرلے
دا پښــتونخوا ده دَ ســـپرلو دَ الفتونـــو کــور دے
دلتـه سـپرلے هـم شـی پښـتون سـپرلے افغـان سـپرلے

فن او تخلیق گـل او سپرلے **سائله** خوند خـو کـوی
چـه گـل سـپرلی تـه وی حیـران گـل تـه حیـران سـپرلے

❀❀❀

چه دَ پښتون سحر ته لارے نیسی
دا دَ بهار خبر ته لارے نیسی

دَ ښاپیرک خو نمر ته سترګے بریښی
ځنګ به ختلی نمر ته لارے نیسی

پورے راپورے چه دَ زړۀ نه اوځی
ځنګ به څوک دے نظر ته لارے نیسی

دوه لارے دوه ګودره یو مازیګر
سړے به کوم ګودر ته لارے نیسی

جانان چه کله دَ هوا مارغه شی
سړے به چرته ورته لارے نیسی

سړے شی څومره مړغیړن **سائله**
چه دَ ژوندون هنر ته لارے نیسی

❀❀❀

# حیرانی

زۀ خو دِ مړ کړم چه دَ زړۀ نه مِ بهر ته لاړے
تۀ کۀ سپوږمئ ته بره اوختے کۀ نمر ته لاړے

زمونږه دوه نصیبه دواړه کافران وؤ په زړۀ
زۀ چرته لاړمه جانانه او تۀ چرته لاړے

ما ستا دَ غوځو شونډو اور ليدلے اور پيژنم
ما ستا دَ حسن بلا زور ليدلے زور پيژنم

دَ سترګو زخم جوړيدۀ ښه نه وی جوړ دِ نه شی
زۀ دَ دے سترګو زخم پيژنم ټکور پيژنم
زۀ په زرګونو په لکونو ليونو ښکلو کښ
دَ خپلو سترو بے قرارو سترګو تور پيژنم
زۀ دَ جهان په شور ماشور او طوفانی سيلئے کښ
ستا دَ قدم ښکالو او ستا دَ بنګړو شور پيژنم
دلته يو وازے دَ غرمو نه سوری لرے نه دی
زۀ ستا دَ سوز په بيابان کښ ډير څۀ نور پيژنم
دا ميخانه کۀ قيد خانه ده، دا ساقی کۀ قيدی
دلته جامونه شته هم ډک هم ئے نسکور پيژنم

زۀ خو **سائل** يم دَ لفظونو په معنو پوهيږم
زۀ ټوقے پيژنم تنز پيژنم پيغور پيژنم

۞۞۞

# سندره

دَ ګل میرو سمسور سپرلی دِ راته اوپسخول
جانانه ستا دَ رالیګلی ګل مننه کوؤم

دَ زړۀ داغونه مِ د څۀ په هنر اوتخنول
جانانه ستا دَ رالیګلی ګل مننه کوؤم

داسے به دے دنیا کښں څۀ دی یاره
چه په دے ګل کښں نه دی
کوم دَ دے ټول وطن خوا کښۀ دی یاره
چه دے ګل کښں نه دی

دَ فکر واړه ګلالی دِ راته اوخندول
جانانه ستا دَ رالیګلی ګل مننه کوؤم

په هر یو رنګ کښں ئے دنیا وینمه
ګل دِ راکړے کۀ دنیا دَ مینے
په هره پاڼۀ کښں ئے تا وینمه
ګل دِ راکړے کۀ دنیا دَ مینے

چه ستا دَ مخ ثومره رنګونه وۀ راٴاو دِ سپارل
جانانه ستا دَ رالیګلی ګل مننه کوؤم

ستا دَ ګل هر یو رنګ او هره رنړا
زما په سترګو کښې ده
ستا دَ ګل هره خوشبو هره خندا
زما په سترګو کښې ده

مانه دِ ټول دَ نادانئې خوبونه اوتختول
جانانه ستا دَ رالیګلی ګل مننه کوؤم

ستا دَ **سائل**، دَ اختر هر انتظار
د دغې ګل تماشه
هر انتظار دَ هر اختر انتظار
د دغې ګل تماشه

ثومره خواګۀ چه د په لاس کښې وۀ راٴاودِ ببنل
جانانه ستا دَ رالیګلی ګل مننه کوؤم

❀❀❀

دَ چا چه زمکه نه وی پاس آسمان ترِ هم پردے وی
نمر او سپوږمئ ترِ هم پردی وی ځان ترِ هم پردے وی

نه څوک سحر شی خپل ګنړلے نه جانان مازیګر
دَ خپلو اوښکو په شیبو باران ترِ هم پردے وي
سړے دَ چا سره جزبے شریکولے نه شی
پخپل زړګی دننه هر ارمان ترِ هم پردے وی
هیڅ تعین کولے نه شی دَ هستئ د وجود
وی په جهان کښ خو خپل ټول جهان ترِ هم پردے وی
لکه دَ للمے دهقان خپل سپرلی ته نه شی کتے
سپرلے خو خود وی ترِ پردے خزان ترِ هم پردے وی
لکه غلام خامار دَ شک دَ بیمارئے خوری سړے
یقین ئے خو الله نه راځی ګمان ترِ هم پردے وی

اکثر پخپل زړهٔ کښ پشان دَ مسافر اوسیږی
خپل زړهٔ هم خپل نه ګنړی خپل جانان ترِ هم پردے وی

❀❀❀

زۀ چه تر څو دَ دغے یو فکر په بام ولاړ یم
زۀ به په یو سر هم په مثل دَ ټول قام ولاړ یم

زۀ چتے نه یم چه هر ښاخ ته به ټوپونه وهم
زۀ کۀ مړ هم وؤم بیا به هم په خپل مقام ولاړ یم

دا تۀ آخر زما دَ نوم نه ولے منډے وهے
زۀ خو په هر ځائے کښې هم ستا په نوم بدنام ولاړ یم

ما څو پیرړئے دَ ژوند په دغه لاره تنگ کړے دے
اندام اندام یم، خو بیا هم اندام اندام ولاړ یم

خلک مِ وژنی دَ دروغو دَ لوئیے په نشه
زۀ آئینے ته دَ رښتیاؤ دَ پیغام ولاړ یم

زۀ دَ خپل ځانه تاؤ زرگونه بلا گانے وینم
زۀ خو ترمنځه دَ یو داسے فکر و فام ولاړ یم

ښکاری په ټول تن ئے دَ ټول راټول وطن زخمونه
په اوښکو لوند شم چه تصویر ته دَ باګرام ولاړ یم

ما غر په سم کړے دے کر دَ محبت دَ ګلو
ماته ناکام مه وائیے صرف ناتمام ولاړ یم

ستا اوچے شونډے به دَ سوال په مئیو تر نه کړمه
زما په لاس کښ دے دَ خپلو وینو جام ولاړ یم

زۀ دَ خیبر په غر ولاړ یمه چاپیره چورلم
تاته قربان لاس په دعا لاس په سلام ولاړ یم

دَ پیر روښان په قیادت کښ دَ خوشحال لښکرے
دَ باچا خان مزار له ځی په احترام ولاړ یم

یو ښکلی بل ته وے تۀ څۀ کے او بل بل ته اوے
صبا به دا مال په **سائل** جوړ وی نیلام ولاړ یم

❀❀❀

دَ تخلیق دَ پسرلو هنر په کار دے
په زړګو کښې دَ ګلونو کر په کار دے

بے زنځیره ژوند په هر حال کښې وحشت دے
دَ زړګی نادان له یو دلبر په کار دے

دَ پرهر دَ درد احساس به عام کول وی
دَ هر چا په زړهٔ کښې یو پرهر په کار دے

ستا دَ زلفو دَ سائے په یاد ژوندے یم
په دے دشت کښې ترقیدلے نمر په کار دے

مونږ په بل منو دَ ژوند صداقتونه
په خپل ځان باندے خو هم باور په کار دے

مونږ خو دا ورانے خاموشے کوڅے وژنی
دلته څۀ خو دَ ژوند شور و شر په کار دے

زلزلےمِ ټکاؤ شوی زړۀ له غواړم
ستا د سترګو تندریز نظر په کار دے

څومره ډیر خیالونه زړۀ ته دی راغلی
دے کاوران له چرته رؤ ګودر په کار دے

زړونه ډیر تنګ شو نعرے وهی سائله
شپه اوګده شوله بلا سحر په کار دے

۲، ۲، ۲۰۱۱ء
پیښور سحر اتۀ بجے

چــه دَ رنګونـــو دَ لمبـــو ئـــے جــامے کـــولے
هغـه ګـل څـۀ شـو چـه دَ زړۀ داغ ئے شغلے کـولے

هغه سندرے په هغو شونډو خاموش ولے شوے
چـه ورتـه مـونږ لکـه مـرغئے پـه غنـو شـپے کـولے
خـدئے زده دَ هغـے مـخ نـه هغـه حسـن چرتـه لاړو
مـونږ چـه بـه هر چاتـه دَ کـوم حسـن قصـے کـولے
جانانه اوس د ستر ګے هغه کار او ښکار نه کوی
زمـا پـه سترګو خو بـه ستا سترګو حملے کـولے
چه ستا دَ غم او خپل جنون سره به ستا پـه کوڅه
کلــه درتلــم زمـــونږ بـــه خلکـــو تماشـــے کـــولے
ملـوکے دا دِ پـه خـال څـۀ او پـه جبـین څـۀ او شـو
خـال خـو بـه ستـا لکـه دَ سـتورو پلوشـے کـولے
سپرلے به هم راتۀ ستا ګل یاد به ئے هم راوستۀ
لکـه ګـلاب بـه مِ دَ زړۀ زخمونـو خـولے کـولے

پـه چغـو چغـو پـه هغـے وخـت پسـے اوژاړمـه
ستا دَ بنګړو پـه شړنګ بـه ستا **سائل** تـپے کـولے

۞۞۞

ماتــه دا نصــيحت كــړے باچــا خــان دے
څـوك چـه خپلـه ژبـه وركـۀ كـړى نـو وړك شـى
دغــه ګفــت دَ داسے پــاك ملنــګ دَ خــولے دے
څـوك چـه خپلـه ژبـه سـپكه ګنـړى سـپك شـى

كۀ پښـتون ځان په خپـل كور شته كول غـواړى
ښـه بـه دا وى چـه پـه خپلـه ژبـه كلـك شـى
څــوك چــه قــام لــرى وى ژبــه ئــے غلامــه
كــۀ څــوك دا درك اونــه كــړى بــے درك شـى

بــے دَ ژبــے قــام بــے وجــے جــوارګر وى
ژوند ژواك اوبائلى ځان اوبائلى هـك پـك شـى
ژبــــه يــــو آواز دَ ټولــــو پرګنــــو وى
پښــتانۀ وائــى چــه پيـنـدۀ پــه خانــك شــى

ژبه روح دے بدن بے دَ روح نه مړ وی
روح چه راشی تن چټک شی او چابک شی
ژبه مینه ده تاریخ دے او کلتور دے
چه دَ ژبے خوک مالک شی نو ملک شی

وایه څنګ به پکښ خپل خیالونه ځائے شی
چه دَ زړهٔ جام په پردو خیالونو ډک شی
صبائے کاروان به څنګ منزل ته رسی
پښتانهٔ کهٔ په شډل ژوند کښ نازک شی

اوس دَ هرے بیمارئے علاج ممکن دے
خدائے دِ نه کړی چه پښتون بیمار دَ شک شی
پښتونخوا بے دَ پښتونه ده نیمګړے
په سندان و سپنه جوړه په ستک شی

دا خو فضل سمسوریږی اے **سائله**
چه بادونه دَ انډک او دَ سونډک شی

۞ ۞ ۞

ستا دَ دلبر نظر نه پس هغه دلدار نظر
هیر به مِ نه شی ستا نرگس نرگس بیمار نظر

لکه شغله شغله مِ والوتو دَ زړهٔ دَ داغه
وطن کهٔ وارهٔ خماری خمار خمار نظر

دَ محبت دَ هر یو رنګ غاړوتو موسم دے
جانانه تهٔ دَ ګل نظر زهٔ دَ بهار نظر

رنګ او رنړا په هره لار ټوټے ټوټے پراتهٔ وؤ
قطره قطره پرے څخیدلے وؤ دَ یار نظر

ویخ مِ ساتی خوب ته مِ نه پریږدی شوګیر مِ ساتی
زما دَ خوګ زړهٔ دَ پرهر هسے بیدار نظر

ښه شوه چه قتل ئے کړم ښه شوه چه تا هم اولیدم
ښه شوه چه نه دِ کۀ په سترګو کښې حصار نظر

په زړۀ مِ بار دِ وسوسو او تلوسو پروت دے
نن مِ لیدلے دَ جانان په ښنړو بار نظر

کومے کوځے ته به اودریږمه په دے کلی کښې
داسے به پټ دَ خلکو وړم په کومه لار نظر

تورو وریځو په شیبو شیبو رااووریږئے
په کنړاوؤ خپو به رائحی په سر دَ دار نظر

چه مِ په ننګ ولاړ وؤ سیال ئې نه ؤو
چه بې ننګئې ته شو مثال ئې نه ؤو

هغې دلدار اوس دلبري کوله
په څنګ مِ واؤرېدو خو خیال ئې نه ؤو
وه به بې شکه چه قاتې دَ سړو
خو داسې ډیر قحط الرجال ئې نه ؤو
دلته ئې هیڅ نه خوارۀ فال ئې کؤو
هلته ئې هر څۀ خوارۀ فال ئې نه ؤو
په مخ ئې لوبې هر یو رنګ کولې
خو هغه ژوند هغه جمال ئې نه ؤو
تندی ئې هغه رنړا نه کؤله
وریځې ئې هغه وې هلال ئې نه ؤو
نظر ئې مات مات او تـوتې تـوتې ؤو
بانړه ئې وؤ خو استقلال ئې نه ؤو

فن ئې وو ژوند او ژوند کمال دَ **سائل**
کمال ئې داؤ چه زاوال ئې نه ؤو

۱۲، ۲۰۱۲ء پېښور

پـه هغـو زلفـو کښې روان يمـه کـۀ شـپے وی وی دِ
دَ هغـو سـترگو پـه رنـړا ځـم کـۀ تيـرے وی وی دِ

دَ جانـان غـګ اورم او ډاډ دَ وصـال هـم راکـوی
کۀ دَ بيلتون پـه کور کښې غبرگے نغارے وی وی دِ
دَ هجـر دشـته ده او نمـر مِ نيـزوار دے پـه سـر
چه دا يو سورے مِ په سر وی کۀ غـرمے وی وی دِ
پـه لامبـوزن جانـان بـلا بـلا يقـين دے زمـا
کـۀ سـمندر وی خـونړے چـپے چـپے وی وی دِ
زۀ ورک د دے سترگو پـه داسے تماشو کښې يم
د دے نـه اخـوا کـۀ زرگونـه تماشـے وی وی دِ
زۀ دَ دے هجـر سـرے لمبے هـم سرۀ گلونـه گـنړم
کـۀ گيـر چـاپيره رانـه بلـے سـرے لمبے وی وی دِ

زما درخو شړنګ دَ بنګړو پـه ليچو مۀ بس کوۀ
ستا دَ **سائل** خپو کښې کۀ هر څو ذولنے وی وی دِ

۳۰م مارچ ۲۰۱۲ء

دعا دِ اوکړۀ کۀ دَ خولے نه دِ ښیرے اووتے
پورے راپورے مِ دَ زړۀ چړے چړے اووتے

پرون دِ اوتښتوو سور سالو دَ سر نه سیلئے
لکه دَ تندر مِ دَ سترګو نه لمبے اووتے

په رنګ کښې رنګ او په رڼا کښې رڼا پاتے نه وه
په ځان کښې زۀ نه وؤم چه تۀ دَ تماشے اووتے

تۀ چه تلے لاړے زه بائللے جواګر پاتے شوم
تپوس ئے مه کوه چه څنګه ورځے شپے اووتے

بیلتون دِ داسے په خوبونو زما لوبے اوکړے
لکه چه ستا دَ یاد دَ تاره مِ تسبے اووتے

ما بــه دَ میــنے دَ دنیــا ویرانــی نــه ژړلــه
خــو دَ تصــویر دَ تصــور نــه مِ جــامے اووتــے

پــټ مِ پــه زړهٔ کښ کــړو دَ خپلــو ارمــانونو قاتــل
کــهٔ مِ دَ ســترګو نــه دَ اوښــکو جنــازے اووتــے

بیګاه په خوب کښ دِ غرمه غرمه شوم تیر په کوڅه
ښــنه غواړمــه دَ خــولے نــه مِ نعــرے اووتــے

دَ هغــو ســترګو دَ خمــار رنګونــه نشــته پــکښ
**ســائله** ســتا دَ شــاعرئے نــه شــرارے اووتــے

۱۸، ۱، ۲۰۱۲ء پېښور

نہ سپرلی شتہ نہ دَ گلونو دَ باران ماښامی
چہ زړونہ وران پراتۀ وی ځنګ بہ شی ودان ماښامی

ما خو دَ خدایہ پہ یوہ دعا کښ غوښتی نہ ؤو
خونړئے شپے خونخوارے ورځے قاتلان ماښامی

تصویر مِ ستا دَ تصور پہ کښ اونہ خندؤو
وړی دی خوب دَ شوګیرونو دَ جھان ماښامی

دَ زړۀ دنیا دہ دَ الفت دَ جزبے ورانہ پرتہ
نہ دَ مجنون ماښامی شتہ نہ دَ جانان ماښامی

ځنګہ مو زار کړۀ دَ بے رحمہ حادثو دَ سرہ
لکہ خوبونہ ماښامی، لکہ خوبان ماښامی

لکه زمونږ د ِ دَ چا نه شی ګوټ دَ زهرو ژوندون
لکه زمونږ د ِ نه شی چاته د شمنان مانښامی

نصیبه څۀ مو خیژوے تل په ډیرئے دَ آزار
تاله ترغه مو شو یاران، لکه یاران مانښامی

خپل بۀ بلا مازیګری مو ماتوی او خوری مو
لکه سپیرۀ سپیرۀ تیریږی په زندان مانښامی

**سائله** دا لا کوم آزار او کوم نظر واخستو
مونږ خو به هره ورځ کول جانان جانان مانښامی

دَ پښتونخوا دَ ژوند تصویر به دَ جانان په شان په کار وی
د دے تصویر رنګ به دَ مینے دَ ارمان په شان په کار وی

دَ دے تصویر سترګے به سرے خمارے، سرے سرے پښتنے سترګے وی
خو په دے سترګو کښ به هر یو نظر، دَ باچا خان په شان په کار وی

دَ پرهرونو په دړدونو کښ، کاواکو لیونو څریکو له
ځانګو ځانګو، جوتے جوتے غیږ به، دَ مینے دَ درمان په شان په کار وی

مونږ لیونی دَ خپل وطن، دشتے میرے، غرمے غرمے دا مانے
زمونږ سندرو له به هم سرے میرے، دَ ګلستان په شان په کار وی

زمونږ په اوښکو کښ د نه وی، بے هسی دَ غلامئے دَ فریاد
زمونږه اوښکے به دَ خپل آسمان، دَ ګرځ ګروز دَ باران په شان په کار وی

دَ ټولو زړونو پرهرونه به نغښتل وی، دَ خپل خپل زړهٔ په پرهر پرهر کښ
سپرلی دَ ټولو خو زمونږ رنګونه، به دَ خزان په شان په کار وی

زړونه به دومره لویوؤ کهٔ څوک تر ِځی بهر چه تلے تر ِنه شی
دَ هجر دا دشت به دَ مینے دَ زندان په شان په کار وی

دَ دے غر دے خوا ِم څرپوسے کړی، اخوا ِم جانان اوسیږی
یوه ټپه خو به دَ دے غر په سر، دَ یه قربان په شان په کار وی

چه دَ مالوچو خریدار پرے هم بولی کولے شی **سائله**
زمونږ یوسف خو به زمونږ دَ کنعان په شان په کار وی

# سندره

دَ مینے هره لحظه
کۀ په لمبو کښې هم وی ګل غوړوی
دَ جانان هره ادا آخر په چغو سرے اوژړوی

دَ ګل ورینو مینے، څومره ډیر صبر انتظار غواړی
دَ لونګینو مینے، دَ انتظار تالئے په دار غواړی
دلته مِ قتل هم کړی، دلته مِ نوے نوے اوځیګوی

زۀ لیونے دَ مینے، هغه دَ حسن هیڅ حساب نه لری
زما په روح کښې اوسی، دَ سترګو یو سوال ئے جواب نه لری
دا جنون دغه جمال، یو بل په څو تالونو اوځنګوی

مونږ په ادا پوهیږو، ولے غرور دَ هیچا نه پیژنو
مونږ دَ وفا لیونی، په وفا مرو خو جفا نه پیژنو
مونږ تصویرونه دَ خیال، مونږ نه دِ هیڅوک بل څۀ نه جوړوی

لګ دَ **سائل** په زړۀ کښې، وخته دا یو تصویر زوړند پریږده
په دے لوټ شوی کور کښې، یوه اثره نیمه دَ ژوند پریږده
**سائل** به ژوند ورکوی، **سائل** دِ اوتړقوی اوپړقوی

۲م اپریل ۲۰۱۲ء

زلفے دِ ولے ورانے ورانے کړے راتولے ئے کۀ
زما جذبے دَ پریشانے کړے راتولے ئے کۀ

خال دِ رید ے، مخ دِ گلاب، شونډے دِ نور گلونه
خورے دِ ډیرے ښکلاګانے کړے راتولے ئے کۀ

کاسه دَ زړۀ، دَ سترګو غلا، جولئ د اوښکو ډکه
کوچیانو بیا کډے روانے کړے راتولے ئے کۀ

سترګے چه کوم لوری ته هم اړوی اور لګوی
لمبه لمبه دِ ګل دامانے کړے راتولے ئے کۀ

بنجاری زړۀ، لونګ رانجۀ، دنداسے ښوک اخلی
خورے دِ چاته سوداګانے کړے راتولے ئے کۀ

چرته دِ تلونکے دی دَ اوښکو لیونئ قافلے
**سائله** خلکو میئنے ګرانے کړے راتولے ئے کۀ

❀❀❀

تل مو سنگار کړی په دردونو پرهرونه
تل مو په دردونو کښې ساتلی بهارونه

کوم دَ هجر تږی له مِ شونډے پرے تر نۀ کړے
ډوبے په شبنم کښې مِ لمدے سترگے گلونه
رنگ مِ کړل په وینو دَ خیالونو تصویرونه
او مِ موندل نوے زمکے نوی اسمانونه
ستا یو تبسم زما یوے اوښکے جانانه
څو زره سوالونه کړۀ څو زره جوابونه
نن په زلفو مۀ پاکوه اوښکے دَ خالونو
نۀ ښائی دَ ستورو په انگنړ کښې ماښامونه
هره ورځ مِ نوے تماشه ده جوړه کړے
هره ورځ مِ گډه کړۀ خپل غزل ته حسرتونه
وړو چه جنازے دَ ارمانونو ادیرو ته
اوری دَ سندرو او سازونو بارانونه

وتی دی دَ شماره کۀ هر څو زمونږه څلی
بل دی په هر څلی دَ **سائل** دَ زړۀ داغونه

✿✿✿

زمـــا دَ زړهٔ دَ محبـــت دَ کلـــی خـــان جانـــان
زمـــا جانـــان زمـــا جانـــان، زمـــا جانـــان جانـــان

زمـا پـه روح کښې دَ فطرت هسـے مسـکے ماشـوم
زمـا دَ ویـنـے شـان پـه رګ رګ کښې روان جانـان
لکـه لمبـه ئے بلـه کـړے پـه زړګـی ګرځـوم
زهٔ پویـه کـړے پـه مطلـب یـم دَ ارمـان جانـان
نن پـه مرئ کښې مِ دَ غریـو پـه شان ؤ کلـک نیـولے
نـن مِ دَ سـترګـو وریـدو لکـه بـاران جانـان
یـاد ئے رنـړا رنـړا سـاتی زمـا دَ زړهٔ جـونګـړه
خدایـه ودان لـرے زمـا مـاه تابـان جانـان
لکـه پـه سـترګـو کښې ئے ټولـه ده راټولـه دنیـا
څهٔ بـه وی زړهٔ نهٔ دے دَ سر پـه بیعـه ګران جانـان
خـوب پـه بـلا او لـه سـکون او قـرار لا پـه بـلا
زهٔ اړولـے یـم پـه نـوی امتحـان جانـان

ستوری سپوږمئ مِ ټوله شپه په سینه لوبے کـوی
میـنے سـاتلے دَ **سـائل** پـه سـر اسـمان جانـان

❀❀❀

ګلاب راته ګلاب په مات ډنډر کتل
وؤ نن خوئے دَ شر په نظر هر نظر کتل

ما پریږده خو کۀ ځان ګورے زما نه تپوس اوکه
جانانه ما به مړ کړی ستا اوتر اوتر کتل

زما نه ئے خطا کړۀ زیر او زور دَ حجابونو
مشکل دی هغو سترګو ته په زیرو زور کتل

په سترګو کښې مو نۀ ځائیدے سترګے دَ یو بل
نن مونږ یو بل ته داسے په سحر سحر کتل

ستا سترګے خو اوس هم راته بلا بلا یادیږی
ځۀ داسے ګرانی راغله چه ډیر ګران شو درکتل

پہ ما خو ما وے ښکے شو دَ گل پاڼو بارانونہ
ما دار څۀ لیدو تا راتہ دَ بام پہ سر کتل

رایاد ئے کړۀ ډیر ډیر لالہ زارونہ دَ خالونو
ما نن خپلو داغونو تہ پہ خپل ځیگر کتل

ورک ورک شو پہ یو بل کښ کۀ ورک ورک شو دَ یو بل نہ
گودر تہ ما ، کۀ ماتہ پہ حسرت گودر کتل

هنر ئے زده کوؤ ورتہ دَ ژوند دَ تصویرونو
**سائل** تہ ئے نن داسے پہ هنر هنر کتل

# اے

څۀ خو رشتيا هم زده کۀ، څۀ ايمانداري هم زده کۀ
په دلبرئے يوازے نه شي، دلداري هم زده کۀ

لکه سپرلے په غر په سمه او کۀ کر دَ ګلو
لکه جانان دَ ژوند دَ ګلو مالياري هم زده کۀ

# آواز

وريځے بيا ګڼان ګڼان شوے تۀ ئے وينے کنه
بيا ئے دَ يو بل په شا نن دَ پټيدو ورځ ده

دَ ليونو غرونو سرونو ته رااورسيدے
راشه پکښې دَ الوتو راالوتو ورځ ده

۱۱م مئ ۲۰۱۲ء

پـــه ګـــل مئینـــو دَ ګلونـــو ســـحر چـــا لیـــدلے
نمـــر پـــه شـــبنم کښ دَ جانـــان دَ نظـــر چـــا لیـــدلے

هـر چـا جـوړ کـړے یـو تـصـویر د ے دَ اختـر او ګـودر
دَ لیونـــو پیغلـــو اختـــر پـــه ګـــودر چـــا لیـــدلے
سترګـے دریاب دی، او کۀ سین، کۀ سمندر دَ جانان
د دغـے لـوئـے خاموشـئـے شـور و شـر چـا لیـدلے
درزا دَ زړونـــو او هیبـــت دَ لیونـــو زلزلـــو
دَ چـــا پـــه زړونـــو راپریـــوتے تنـــدر چـــا لیـــدلے
دَ ګـل دَ سـرو شـونډو سـندرے دَ هـر چـا پـه شـونډو
خـو ګـل دَ تنـد ے نـه زوړنـد پـه ډنـډر چـا لیـدلے
چـه دَ تخلیـق دَ ازغـو څـوکے پـه زړګـو راکـاږی
پـه درد چـه لـوئـے کـړی وحشت داسـے هنـر چـا لیدلے
دَ بـریـخ پـه دهـار ژوبـل، پـه مـاتـو پروغـوخ دَ سـتورو
رارغړیـــدلے زړۀ دَ زلفـــو پـــه غـــر چـــا لیـــدلے

جانانـــه ســـتا پـــه ورک آواز پســـے راوتـــے **ســـائل**
دَ زړۀ دَ دشـــتے دَ غرمـــو نـــه بهـــر چـــا لیـــدلے

۞۞۞

دَ بے قراره اضطراب نه تاله خوب نه درځي، ماته اطمینان نه کیږي
مینه سودا ده خو دَ زړهٔ دَ درد ، دَ زړو په دکان نه کیږي

تهٔ خو بس یو ځل مینه اوکهٔ او دَ هغے زړهٔ په دشت کښ تمنا اوکرهٔ
دا درته چا وئیل چه دلته کښ ګل، دَ خپلو اوښکو په باران نه کیږی
آسمان ته اوخیژه خو ګرانه دغه خپله زمکه هم درسره اوخیژوه
ځکه چه بے دَ خپلے خوارے زمکے، هیچرته ګزران نه کیږی
چه دَ غوځ غوځ زړګی دَ دړد څړیکے زخمی زخمی نعرے شی کله
ستا یو نظر به غواړی، نور په ټولو، سترګو دَ جهان نه کیږی
مونږ خو په تش تصور، تش خیال دَ چا هم نه اخلو ټوله دنیا
دا کوم منکر وے چه تصویر تصویر وی، سود پرے دَ جانان نه کیږی
دَ مینے لار دَ زړهٔ تاوان، دَ سر تاوان دَ ځان تاوان غواړی خو
مئینان وائی چه په دے بیه کښ ګټه ده تاوان نه کیږی
دا خلک څوک دی چه دَ عشق دَ تخلیقاتو سرچینے اوچوی
ژوند دَ الفت خو دَ ایجاد او دَ بارودو په ډیران نه کیږی

د دے جهان دَ ژوند قیمت څهٔ دے په هره لحظه مرګ **سائله**
په باریکیو دَ احساس نه کیږی، په تصور او په وجدان نه کیږی

❀❀❀

دَ زړګی داغ مِ شو ریدے، سرے کنارے غواړی
ستا دَ سرو سرو ملالو، سترګو نظارے غواړی

اوس مِ دَ زړۀ هر وینے وینے پرهر ژبے کوی
خو دا به ستا دَ نظر ګل ګل شرارے غواړی

زما دَ زړۀ د دشت نه چرته لاړے چرته ورک شوے
زړۀ مِ په کوکو کوکو، تاپسے نعرے غواړی

دومره موده ستا دَ ښیرو په مطلب نه پوهیدم
اوس زما زړۀ پخپله خپل ځان ته ښیرے غواړی

مونږ هم سندرے وئیل غواړو، مونږ هم مینے کوؤ
زمونږ دَ خیال دامانے هم ګل منجرے غواړی

جنج به دَ ستورو ، په ډولئے پسے ليګو دَ سپوږمئے
دا بــه شــريک اتنــړ او غبــرګے نغــارے غــواړی

زمــا درخــو دَ ړومبنــی مابنــام ړومــبے ديــدن بــه
شونډے مسکئے، تندے تابان، زلفے خورے غواړی

دا پښـتونخوا ده سپين ګلونه هم په وينو سرۀ دی
جانـان زمـا نـه دَ رامبيـل چامبيـل ګجـرے غـواړی

چـه پښـتانۀ دی کـۀ پـه خپـل او کـۀ بـل وطـن دی
**سـائله** سـتا نـه خبرلوسے فـن پـارے غـواړی

# سندره

زیړ ګلونه هم پکښې دَ سرو ګلو جامې کوي
دغسې اختـــر زمــــونږ دَ کلـــو وي

داسې تماشې چه پسرلی ئې تماشې کوي
دغسې اختـــر زمــــونږ دَ کلـــو وي

څــــۀ پــــه مســـتانه ځلمــــو
ښـــکلې وي حجــرې حجــرې
څــــۀ پــــه رنګینـــــه وړو
ښـــکلې وي کـــوڅې کــــوڅې

ســـترګې دَ مئینـو دَ یـو بـل پـه مـخ حملې کـوي
دغسې اختر زمونږ دَ کلي وي

هــــر څــــوک بـــې قـــراره زړۀ
پـټ پـه خپـل ګوګـل کښې کـړي
هر څوک دَ خپـل ژوند ارمـان
ورک پـه یـو او بـل کښې کـړي

ستړګے پـه خنـدا خنـدا کښ یـو بـل تـه قصے کـوی
دغسے اختر زمونږ دَ کلی وی

هــــر جبـــین رنـــړا رنـــړا
هــــر نظـــر ســـحر ســـحر
هـــره خولـــۀ خنـــدا خنـــدا
هــــر بشـــر دلبـــر دلبـــر

څـومره چـه داغونـه دی پـه زړونـو کښ شـغلے کـوی
دغسے اختر زمونږ دَ کلو وی

چرتـــه پـــه ټـالونو چـــه
پـــیغلے ځـــانګی شـــور کـــوی
ســـرے لـــوپټے الـــوزی
یـــه **ســـائله** اور کـــوی

اور کوی تندی دَ پیغلو سرے شونډے لمبے کوی
دغسے اختر زمونږ دَ کلو وی

❀❀❀

دا دَ دهقانے دعا لپه ده باران غواړی
زړۀ له بهار او دَ بهار ژوند له جانان غواړي

تمناګانے دَ هر چا دَ ماشومانو شولے
هر څوک په سر سایه دَ امن دَ اسمان غواړی

سپرلے دِ ماتے کړی په ګلو دَ شبنم آئینے
دا خاوره یو ځل دَ رنګونو چراغان غواړی

چه کله کله دا زړۀ ډوبے خاموشئے ماتوی
دَ غرونو غاړے هم تنزری هم طوطیان غواړی

نشانه چرے د دے سترګو خطا تلے نه ده
دا نه خو شیش او نه ټوپک او نه دیدوان غواړی

نه لاله زار جوړول ګران دی نه ګلشن جوړول
یو په زړۀ داغ بل زړۀ چاؤدون دَ ګل په شان غواړی

دشت مِ دَ خپو او سمندر مِ دَ سینے لاندے کۂ
ناممکن هیڅ نه دی خو یو پښتون ارمان غواړی

زۂ خو ئے شوم شوم خو په ما باندے ئے سل رانغے
هغه دَ سترګو دَ کتلی جنګ تاوان غواړی

خدایه دا ولے هر څوک غم دَ ځان ځانئے واخستو
هر څوک دَ خپل خیال لوبولو له میدان غواړی

تر تصوره رسیدل دَ جانان توقے نه دی
**سائله** هره لمحه نوے امتحان غواړی

حسن هغه وی چه دَ مینے په تصویر کښې خاندی
جانان هغه وی چه دَ خوږ زړهٔ په تحریر کښې خاندی

حسن احساس دے چه تاودهٔ لری، وجود نهٔ لری
مینه جنون دے چه دَ زلفو په زنځیر کښې خاندی
خلک دَ دے دولت نه تاج او تاجداری ځاروی
جانان چه خاندی نو په سترګو دَ فقیر کښې خاندی
هر څوک چه ژاړی نو دَ خپل زړهٔ تنهایئ کښې ژاړی
هر څوک چه خاندی نو دَ بل دَ زړهٔ جاګیر کښې خاندی
زمونږ خیالونه دَ یو بل نه ورکیدهٔ نهٔ غواړی
زمونږ خوبونه دَ خوبونو په تعبیر کښې خاندی
دغسے سترګے به حسینے څنګه نهٔ وی اخر
چه تر سحره دَ دردونو په شوګیر کښې خاندی
ستا دَ خبرو لیونتوب ستا دَ خبرو ځوانی
لکه جادو په خپل اثر په خپل تاثیر کښې خاندی

حسن یو راز دے دَ **سائل** دَ فن دَ خیال په زړهٔ کښې
حسن به ستا، ستا په معنو او په تفسیر کښې خاندی

❀❀❀

# سندره

زۀ دَ اختر میاشت دَ جانان پہ مخ لیدل غواړمہ
خدایہ اختر راولے
خدایہ اختر راولے

خپل ارمانونہ پہ ښالونو ځنګول غواړمہ
خدایہ اختر راولے
خدایہ اختر راولے

دَ یار دَ یاد پہ تار لونګ بنړمہ
غاړے لہ نوے لونګین جوړوؤم
پکښ لړونہ رنګ پہ رنګ بنړمہ
هر لړئے ښکلے او رنګین جوړوؤم

دَ چا دَ مینے لولکی پکښ بنړل غواړمہ
خدایہ اختر راولے
خدایہ اختر راولے

ما دغہ یو جانان جانان اختر تہ
بلا کلونہ انتظار کړے دے
ما پہ لوګو ما پہ لمبو کښ دَ ژوند
دَ خپل خیالی لالی دیدار کړے دے

دَ زړۀ ساتلے لاله زار پرے ورشندل غواړمه

خدایه اختر راولے

خدایه اختر راولے

ما دَ مئین یار دَ تصویر سترګو له

دَ څو رنګونو انتخاب کړے دے

یو مِ غانتول بل مِ ریدے راوړے

یو مِ ششتے بل مِ ګلاب کړے دے

زۀ ئے تصویر په خپلو ګوتو جوړول غواړمه

خدایه اختر راولے

خدایه اختر راولے

زۀ دَ الفت دَ روایت زندګی

زۀ دَ درخو دَ لیونتوب سندره

زۀ دَ جانان دَ یو نظر صدقه

زۀ دَ شوګیر سترګو دَ خوب سندره

زۀ دَ **سائل** جهان دوبار آبادول غواړمه

خدایه اختر راولے

خدایه اختر راولے

❀❀❀

❁

ستر گو مِ سوال اوکۀ جواب ئے راکۀ
گلاب گلاب ئے کړم گلاب ئے راکۀ

گل ئے په یو لمبه په بل لاس کښې وه
ولے اختیار دَ انتخاب ئے راکۀ
کاڅے دَ ستر گو ئے راواړولے
رنګ دَ خمار دَ میوناب ئے راکۀ
ما ورته وے چه آدم خان به مِ کړے
هغه درخو شوله رباب ئے راکۀ
ما پیژندے ستا بے مروته ستر گے
گناه مِ هیڅ نه وه عذاب ئے راکۀ
تاته دَ خپل یو نظر څۀ پته وه
چه څومره توان او څومره تاب ئے راکۀ

ما وے زۀ څان ژوندے ساتل غواړمه
راغلۀ دَ خپل **سائل** کتاب ئے راکۀ

۱، ۳، ۲۰۱۱ء

ما وے چہ ښنګه به ئے وے وئیل بلا ښکلے یم
ما وے دَ کوم ځائے ئے، وے زۀ دَ پښتونخوا ښکلے یم

ما وے کۀ زۀ نه یم خطا نو تا رشتیا اونۀ وے
وے ئے دروغ مِ دِ شی زهر په رشتیا ښکلے یم

ما وے ځه نن ښکلے صحی، ولے صبا به څۀ ئے
وے ئے یقین لره هم نن هم به صبا ښکلے یم

ما وے چه دا دوکه درکړے آئینے خو نۀ ده
وے ئے چه زۀ دَ مخ نه زیاته په معنےٰ ښکلے یم

ما وے خندا ښکلے وی چرته دِ ژړلی هم دی؟
وے په ژړا کښې خو دَ ښے خندا نه لا ښکلے یم

ما وے سندره دِ وی خوښه کۀ رباب دَ آدم
وے ئے چه زۀ شمه درخو لکه لیلیٰ ښکلے یم

ما وے غزل دَ **سائل** ښکلے وی کۀ تۀ ښکلے ئے
وے ئے دَ دغو آئینو نه هم سیوا ښکلے یم

❀❀❀

# یوه خبره

دَ زړۀ دردونه به دَ یو بل سره وړو او کۀ نه؟
دَ ژوند غمونه به په ژوند شریکوؤ او کۀ نه؟

پټ راته اوایه په غوږ کښې راته پټ اوایه
راته رشتیا اوایه مینه به کوؤ او کۀ نه؟

# ابتداء

تۀ کۀ مِ دَ زړۀ کلی ته رالے زۀ به چرته ځم
دا زما زړګے چه مانه والے زۀ به چرته ځم

زۀ یمه ژوندے دَ خپل زړګی په پرهرونو کښې
تا کۀ پرے کار اوکړو دَ دسمالے زۀ به چرته ځم

دَ غزل خوب لہ مِ دَ نوی ژوندون خیال راوړۂ
زما "درخو" چرتہ پہ سترګو کښں خو سوال راوړۂ

نن مِ واللہ پہ زړۂ بلا بلا رااوریدے
نن لکہ غیرو غشے راشہ او وصال راوړۂ

کال پس انکار لہ راغے، راغے او پہ مخہ لاړو
دا مِ جانان مالہ تحفہ دَ نوی کال راوړۂ

داغ مِ دَ زړۂ دَ ریدی اونۂ کړے شغلے محبوبے
تۂ چہ راځے نو خامخا پہ زنہ خال راوړۂ

تا پرھر کړے زړۂ مِ اوس ھم وینہ نۂ بس کوی
دَ لوپټے ګل دِ رسوا نۂ کړی دسمال راوړۂ

زما دَ خوږ سترګو دړدونہ پکښں نغښتی یوسہ
اور دَ جمال پہ اننګو کښں دَ جلال راوړۂ

پاتے تر ستا دَ تصور تصویر نیمګړے نۂ شی
دَ خپل **سائل** دَ ھنر ګوتو لہ کمال راوړۂ

۞۞۞

# باران

درد دَ انسان هم نۀ وؤ او خوږ دَ انسان هم نۀ وؤ
زړۀ او احساس هم نۀ وؤ او سوے دَ وجدان هم نۀ وؤ

مړ ئے نۀ کۀ یو کافر او یو مسلمان هم نۀ وؤ
اور چه مِ په کور وؤ لګیدلے باران هم نۀ وؤ

# اظهار

هغه الوتے رنګ ستا ساه بے ساه په زړۀ ګرځوؤم
ستا دَ زړۀ هغه لیونئے درزا په زړۀ ګرځوؤم

اوشوے مودے ګناه مِ دا ده چه هیرېږے مِ نه
اوشوے مودے ستا دَ دیدن ګناه په زړۀ ګرځوؤم

۞۞۞

# نۀ غوارم

درد کۀ راکولے شے دوا بہ درنہ نۀ غوارم
تل راتہ دروغ وایہ رشتیا بہ درنہ نۀ غوارم

هره ورځ مِ یو نوے پرهر پہ زړۀ کوه او ځہ
کار دَ محبت دَ مسیحا بہ درنہ نۀ غوارم

اوښکے مِ یو څو پہ ترږو سترګو کښں راواچوۀ
دومره هم کۀ اوکړے نو خندا بہ درنہ نۀ غوارم

چه دا دَ زړونو پیژندل به کوم انسان له ورځی
شوګیره ما اوکړه او خوب زما جانان له ورځی

ګلستانونه به د دے سترګو لیدو له راځی
هغه بلا ښکلے به ولے ګلستان له ورځی

سپوږمۍ مِ زړۀ کښ یاره ستا یادونه اولړزول
زړۀ مِ راڅک شو ځکه اوښکے مِ ګریوان له ورځی

دَ زړۀ تیرو له ترِ دَ سترګو رنړاګانے غوارم
جانان مِ لوبو له دَ ستورو چراغان له ورځی

هغه ډولئے چه دَ ارمان په دغه لار تیریږی
آسمان به زمکے له کۀ زمکه به آسمان له ورځی

زړونه مو یو دی قسمتونه مو جدا **سائله**
په دے خبره خو ارمان زما ارمان له ورځی

۹م اپریل ۲۰۱۲ء پېښور

دَ زړهٔ په ټولو پرهرونو کښې تقسیم ولاړ یم
څرته سالم سالم ولاړ یم څرته نیم ولاړ یم

لیونے اوس هم یم خو هغه لیونے نهٔ یمه
حالاتو اوس په ما کښې کړے دے ترمیم ولاړ یم

عشقه راځه ډیر په کچه کانړو دِ نه تلمه
دے دروازے ته به تر څو لکه یتیم ولاړ یم

ډیرو نادودو دِ زما دَ زړهٔ کر سپے غوځے کړے
ولاړ خو یم خو په مثال لکه دَ جیم ولاړ یم

خدائے زده چه دا څلے او دا منظر کوم یاد رابښی
دلته چه راشم ګرځے نیمه په تعظیم ولاړ یم

اوس دِ په پټو پټو سترګو په کوځه تیریږم
اوس چه دِ کوم بتکی ته اودریږم تسلیم ولاړ یم

لکه پښتون وطن په یو تن کښې څلور ټوټے یم
څرته **نوید**، څرته **حمید**، څرته **سلیم** ولاړ یم

❀❀❀

لپه ئے ګل شوه دَ شبنم په خولۀ دعا غواړی
دَ خپل فنکار زړۀ دَ تصویر مخ له خندا غواړی

وسعت لری پښتنه مینه ولے حد نۀ لری
زړګی له درد غواړی او درد له مسیحا غواړی

دَ نن دَ خیال سترګے دَ مینے دَ جانان سترګے وی
حسن له وینے دَ زړۀ غواړی او رشتیا غواړی

حسن لمحه لمحه دَ نوی خیال جامے اغوندی
دا چه په هره انتها کښ ابتداء غواړی

دَ وعدے خپل سرور دَ وریت انتظار خپله نشه
بهانے خپل بیګاه له خپل نوے صبا غواړی

تۀ به دِ خپل ستم ته خپله هم زړۀ اونۀ نیسے
**سائل** هیڅ نۀ غواړی مغرور جانانه تا غواړی

❀❀❀

# تصویر

گلاب گلاب خوشبو خوشبو بهار بهار تصویر
جانان جانان دلبر دلبر دلدار دلدار تصویر
خدائے خبر څوک زما دَ زړهٔ صنم خانے له راؤړی
خمار خمار ژوندون ژوندون بیمار بیمار تصویر

لکه دَ سین کوی چپے دَ دے تصویر سترگے
زما په زړهٔ کوی حملے دَ دے تصویر سترگے
زهٔ چه دَ کوم لوری ورگورمه راگوری راته
په احساساتو خوروی دَ زلفو سوری راته
دَ خاموشئے په مانړامونو کښ حصار تصویر
لکه دَ سوی بلبل زړهٔ گډ په چغار تصویر

دَ دے تصویر په مخ پرتے رنړے رنړے اوښکے
چه اوچو شونډو ته رارسی اودریدلے ښکاری
دَ نیم اودی حجاب پړونی ته ئے سرے کنارے
ښکلے خو ښکاری خو په دے انداز کښ ولے ښکاری

لکه پخپله چه کوي ځان له سنګار تصوير
لکه په غاړه کښ دَ خپلې غاړې هار تصوير

دغه تصوير چه نن څوک راؤړي نو صبا ئې پټ کړي
او په دريمه شپه واپس په هغه ځائې پروت وي
تصوير هغه وي دَ تصوير رنګونه هغه نۀ وي
سترګې ئې مړې وربل ئې خور وړې سيلئې پروت وي
لکه چه وژني مِ زره نۀ کوي وار تصوير
خدايه چه هغه وؤ کۀ دا لکه شهکار تصوير

تصوير کۀ يو غم دے نو وړۀ راؤړه ئې دوه حيرانئې
فن ته مِ زړۀ کوي، کۀ زړۀ مِ بے جانانه کنړي
زما دَ زړۀ صنم خانه ئې ده خالي کنړلې
کنه ژوندون مِ بے مراده بے ارمانه کنړي
چه دا تصوير دے دَ فن کار کۀ دے فنکار تصوير
**سائله** ستا نه جوړوي جوړے دَ کار تصوير

۲م اپريل ۲۰۱۲ء پېښور

خپل وطن او خپل اختر او ګران جانان دَ خپل وطن
خپل سحر او خپله زمکه خپل آسمان دَ خپل وطن

خپلې پولې خپل پټي او خپل غانټول او خپل شړشم
خپل سپرلے او خپل شینکے او خپل باران دَ خپل وطن

خپلې لارے خپلې کوڅے خپل منګې او خپل ګودر
خپلې سترګے خپل ښائست او خپل خوبان دَ خپل وطن

خپلې دشتے خپل غرونه او خپل غارمه او خپل سورې
خپلې جذبے خپل حسرت او خپل ارمان دَ خپل وطن

تورے تورے ډکے ډکے سترګے په رنجو تورے
بام او در سالو سالو یو لوئے جهان دَ خپل وطن

سرګے سرګے ګل ځوانئے او ښانګے ګل پېغلے
سکنړ سکنړ ښاپیرئ ګل ریحان دَ خپل وطن

هر ځۀ ئے **سائله** په ترښو کښې هم خواګۀ وائی
تریخ خزان دَ خپل وطن او تریخ هجران دَ خپل وطن

❁❁❁

گل خو دَ گل دَ لیونئے ځوانئے دَ خیال نوم دے
دَ زړهٔ چاؤدون هنر پخپله دَ کمال نوم دے

مینے هر ځوک کوی خو هر ځوک مینه نهٔ پیژنی
وصال دَ هجر نوم دے، هجر دَ وصال نوم دے

رنړا دَ وینے تل زما دَ زړهٔ دَ داغه اخلی
زما دَ زړهٔ داغ ستا دَ رونړ جبین دَ خال نوم دے

زلفے دِ پیچ و خم په مخ او لونګین په سپینه
ځانګل دَ فکر او دَ خیال پکښ دَ تال نوم دے

لکه دسمالے مِ دَ زړهٔ په پرهرونو لګی
دَ مسیحا نوم ستا دَ ګوتو دَ دسمال نوم دے

دَ چا دَ یاد خوشبو دَ ځان سره راؤړی **سائله**
سپرلے کهٔ نوم دے دَ ګلونو دَ جمال نوم دے

❀❀❀

کۀ واؤرے پرے وریږی کۀ اورونه پرے وریږی
زما دَ وطن غرونه څۀ دی زړونه پرے وریږی

تا وے چرته زمونږ کلی ته هم راپیښه اوکۀ
کوڅے کۀ ئے څو ورانے دی ګلونه پرے وریږی

ښائست په پښتونخوا کښ کړے کر دَ ګلابونو
دَ اوښکو او دَ وینو بارانونه پرے وریږی

صبا له به دنیا راځی د دے خاورے لیدو له
آسمان پرے زرغونے کړی رنګونه پرے وریږی

موسم ورله تصویر دَ فن په ګوتو دے تراشلے
شوګیرئے دے په سترګو کښ خوبونه پرے وریږی

دا دشتے به صبا له وی تک سرۀ او زیړ ګلونه
صبا له به **سائله** بهارونه پرے وریږی

۱۷م مارچ ۲۰۱۲ء پېښور

دَ مینے خیال دَ تهمتونو په باران اخلۀ
کۀ دنیا دوه ډلے شوه ډله دَ جانان اخلۀ

لالیه ټکنړے غرمے تلی تندی سوزوی
کله نا کله خیر خبر دَ گلستان اخلۀ
په محلونو کښ ورکیږی دَ جونگړو خلک
چه تخلیق کړی وی فطرت هغه خوبان اخلۀ
چه دَ کنډر کنډر زړګی نه د تیرے اوشړی
کۀ مِ منے بلا دَ خپل ماه تابان اخلۀ
په سوداګانو کښ دَ زړونو ګټے چا کړی دی
دا ځنے ځنے سوداګانے دَ تاوان اخلۀ
لارے دَ ژوند سوؤنه هم زرګونه هم کیدے شی
ته ترِ یوه لاره دَ خپل زړۀ دَ ارمان اخلۀ
عظیمے مینے په کچه پیکه خیالونو نۀ شی
پکښ پخپله دَ خپل ځانه امتحان اخلۀ

ښار ته به لاړ شے خو **سائله** ځوک دِ اونۀ ټګی
دَ ژوند خوبونه دَ دردونو په دکان اخلۀ

❀❀❀

خال دِ پـه ګلاب کښ څخیدلے وۀ سـحر سـحر
مـا وئیـل چـه ولے چمـن ښـکلے وۀ سـحر سـحر

مـا وے کۀ ګوګل مِ شـتـه نـو ولے پـکښ زړۀ نشتـه
پوئے شوم چـه هغـه تـا تنبـتـولے وۀ سـحر سـحر
دا ښـکلے دَ ګـل ګـل خوبـه، چـا راپـاسـولے وۀ
اورئے ټـول ګلشـن تـه لګـولے وۀ سـحر سـحر
دے فنکار غزل زما دَ مینے دَ تصـویر پـه شان
ټول پښتون ژوندون جهان تراشلے وۀ سحر سحر
نـن ئے پـه یـو ګـل راګیلولـو روګـی بـوګـی کـړم
یـو ارمـان مـو نـن هـم ریـژولے وۀ سـحر سـحر
سـتـا نـوم مِ پـه څوکـو دَ تیـره تیـره ازغـو ګلـه
پټ پـه زړۀ ښکارۀ ښکارۀ لیکلے وۀ سحر سحر
سر دِ کړو ورټیټ دَ ګـل دنیـا دِ راځنګزنـه کـړه
غـر پـرے سـتـا دَ زلفـو نړیـدلے وۀ سـحر سـحر

یـه سپرلیـه دا **سائل** او دا پـه حسـن ورک مئین
چـا لکـه ریـدے پـه زړۀ داغلے وۀ سـحر سـحر

۞۞۞

حسن دِ گل گل او غضب غضب کتل جانانه
مطلب دِ څۀ دے ورانول کۀ جوړول جانانه

ستا لونګین له مِ جولئے دَ ستورو ډکه راؤړۀ
اوس به په ګوتو دَ سپوږمئ غواړی بنړل جانانه

زما دِ هغه لیونی خویونه نۀ هیریږی
چه تندرونه به دِ سترګو پریښتل جانانه

غرمے غرمے دشتے مِ ډیرے دَ خپو لاندے کړلے
چه ستا یادونه راسره تلل جانانه

دَ محبت تصویر هیچا مکمل کړے نۀ دے
لا پکښې نور دی ډیر رنګونه ځایول جانانه

مونږ خو دِ وړے ټول عمری په زړګی تاؤ دَ جبین
مونږ خو دِ ناست نه یو په سوری دَ وربل جانانه

**سائل** ډیر څۀ زده کړۀ خو یو پوئے شو په دغه هنر
ستا نازولی غم له سترګے تورول جانانه

❀❀❀

خبره ښه وه خو زما دَ کار خبره نۀ وه
دا خو په دے چه دا زما دَ يار خبره نۀ وه

چه دَ ګل ګل په شونډو ستا دَ شونډو ذکر نۀ وؤ
دا مِ دَ زړۀ دَ ليوني بهار خبره نۀ وه
زما په ځائے خو چه نن تۀ دَ ميخانے وتے وے
نن خو تالان ګډ وؤ ساقي دَ وار خبره نۀ وه
خبرے ډيرے وے خو ډيرے دَ عنوانه لرے
منصور په دار وؤ دَ منصور دَ دار خبره نۀ وه
دَ اوسنو مينونه څومره بازاري شوه ژبه
مينه خو داسے دَ لنډي بازار خبره نۀ وه
ګيلے دَ مينے حل کوي په زړۀ دننه خلک
دا خو څۀ داسے دَ کوڅے او لار خبره نۀ وه
دَ پښتنو مئينو ژبے وي دَ سترګو ژبے
داسے په زور دَ چنچنړي اظهار خبره نۀ وه

تۀ څۀ خبر ئے چه جانانه په زړګی دَ **سائل**
دومره داغونه وؤ چه دا دَ شمار خبره نۀ وه

۞۞۞

دنیا یوه شوه خو زما نه پکښې ځان ورکیږی
هم رانه ځان ورکیږی هم رانه جانان ورکیږی

ستا دَ ښائست ګلاب به ځنګ پائی په دے سکړه کښې
زما دَ اوښکو اوښکو سترګو نه باران ورکیږی

ځۀ ئے دَ ګوتو نه نیولے هسے نۀ ګرځوۀم
ما نه په دے ښار کښې دَ ټول ژوندون ارمان ورکیږی

زما په سترګو کښې دَ دے کوڅو ریګونه باد کئے
زما دَ سترګو دَ خوبونو نه خوبان ورکیږی

داسے دَ ذات دَ کټے غم بے کیفه کړی یو مونږ
حوصله هر چرته دَ مینے دَ تاوان ورکیږی

غوټے به ورکړم او سینه به پرے راپټه کړم خو
زما دَ ګوتو نه تارونه دَ ګریوان ورکیږی

دغه تیرے دی په هر حال کښې غوخول **سائله**
کۀ رنړاګانے پکښې هر څو دَ امکان ورکیږی

۷م مئ ۲۰۱۲ء

زړۀ دِ کم کنه دَ زړۀ مراد دِ کړم
ودِ ترم کلک کنه آزاد دِ کړم

وے مِ هیر مِ نۀ کړے راته وے وئیل
کله مِ هیر کړے ئے چه یاد دِ کړم

وے ئے زۀ خو ګل یم ستا په لاس کښې یم
نۀ یمه ماشومه چه برباد دِ کړم

ما په شیرینئے کۀ په درخو نیسے
وایه آدم خان او کۀ فرهاد دِ کړم

ورک به دِ کړی دا پردئے پردئے کوځے
مۀ ځه چه په سترګو کښې آباد دِ کړم

راشه لکه گل مِ شه په زلفو کښې
راشه چه دَ خپلو زلفو باد دِ کړم

دلته کۀ لمبې کوې خو خاندے به
ښه ئے کشمالے او کۀ شمشاد دِ کړم

وے مِ ستا دَ زلفو دام کښې گیر شومه
وے ئے کۀ خفه ئے چه آزاد دِ کړم

تۀ خو یو کمال دَ بل دَ پاسه کړې
راشه چه سندره دَ هیواد دِ کړم

تۀ کۀ ئے **سائل** زۀ هم شۀ یمه ښه
او ایه زاری او کۀ فریاد دِ کړم

۲۲م اپریل ۲۰۱۲ء

# موسم

لکه بهر چه وی په زلفو ځنګیدلے موسم
لکه دننه مِ په زړهٔ کښې چا وژلے موسم

شبنم په شونډو دَ ګلاب اوښکے په مخ دَ جانان
دا ژړیدلے دے موسم کهٔ غوړیدلے موسم

# شپه

زړهٔ مِ نیولے وؤ په سرهٔ لمبه دَ بلے ډیوے
ما تر سحره ستا دَ حسن وظیفه اوکړله

زما په تن تمامه شپه سرے غرغنډے بلیدے
ستا په لمبه لمبه یادونو کښې مِ شپه اوکړله

شبنم ټوله شپه ژړيږي پروت نهر دَ ګل په غيږ کښ
په خندا شي چه ځان اوويني سحر دَ ګل په غيږ کښ

تماشے په تماشو کښ، آئينے په آئينو کښ
سړے ډوب کړي دَ رنګونو سمندر دَ ګل په غيږ کښ

کيفيت دَ روح سپرلے شي، سپرلے روح دَ کيفيت شي
ليونے شي سپيلنے شي، هر نظر دَ ګل په غيږ کښ

په ما رنګ دَ لمبو توے کړي، ما ژوندے کړي ما زلمے کړي
ما ليدلے دے يو داسے جادوګر دَ ګل په غيږ کښ

دَ سپوږمئ په پلوشو ئے ټوله شپا لامبلي
راغے قرض ژوند ترِ غواړي، پريوت نمر دَ ګل په غيږ کښ

خدائے دِ اوکړي چه جانان وي، محبت وي او ارمان وي
خدائے دِ اوکړي چه سپرلے وي، هم اختر دَ ګل په غيږ کښ

**سائل** ځي مازيګري له دَ چينو او چنارونو
ورته کړے اشارے دي، خپل دلبر دَ ګل په غيږ کښ

❀❀❀

اور دِ پـه پـانړه پـانړه بـل کـړی دَ ګـل
نـور دِ سـپرلے سـنګار بـدل کـړی دَ ګـل

کـۀ څـوک مـرهم دَ غـوټـو شـونډو کـوی
لمبے لمبے شونډے دِ ښـکل کـړی دَ ګـل

خنـدا کښ ژاړی پـه ژړا کښ خانـدی
دغـه ادا بـه مِ پاګـل کـړی دَ ګـل

الـوزه مـۀ څـو نـه رنـګ بـاد دَ خـزان
مسته څوانی خـاورے خجل کـړی دَ ګـل

نـن مِ دَ دے ویـرے سـندره نـۀ وے
چرتـه غمـژن بـه چاپیرچـل کـړی دَ ګـل

ارمانـه نـوم دَ رقیـب ذکـر دَ شـیخ
هسے پیکـه پیکـه محفـل کـړی دَ ګـل

دَ ژونـد پـه هـر رنـګ کښ خبـرے کـوی
**سـائل** چـه نـاز ادا غـزل کـړی دَ ګـل

❀❀❀

❀

دا مینه خو سپوږمۍ ده چه وریږي او زریږي
دا جام دے دَ شرابو چه تشیږي او ډکیږي

دا روح مِ دَ زخمی لولکۍ تنده ده ارمان دے
دَ یار دَ سوی یاد په ګل خوریږي او ټولیږي
زۀ دے مخ ته لوګیږم او لوګے تر لوګے کیږي
دا سترګے دی کۀ شمعے چه سوزیږي او بلیږي
هم نن دَ دیدن شپه ده هر ګل بل ته غاړه وځی
هم دلته ژوند دَ مرګه دے، قتلیږي او خندیږي
اعجاز دِ په دے لارو دَ جانان جانان آواز دے
په دم او په قدم کښ سرے لوئیږي او پاخیږي
دا زمکه عجیبه ده زندګی پرے زرغونیږي
ګل دلته کښ غوړیږي او رژیږي او ټوکیږي

**سائله** ځنے شپے دِتر قیامته سحر نۀ شی
یو اور داسے په کار وی چه مړکیږي او بلیږي

۸م مئ ۲۰۱۲ء

# دَ زرک جمال کال
## یوه دعا

نن ده بیا دَ جولائے نیټه دویمه
شو پوره دَ زرک جان اولسے کال

خدایه دا کلونه ډیر او بختور کړے
چه رنګین وی لا د دے نه وړپسے کال

چه زرک مِ دَ شلمے پیړئے ګل دے
یو ښتمه کړے په دۀ هر کال سپرلے کال

خدایه ژوند دَ سرېتوب ورته عطا کړے
چه هر کال ئے وی دَ ژوند دَ تماشے کال

❀❀❀

لکه چه زهٔ یم، ستا په ما ولاړ نظر ته ولاړ
داسې مې نمر په سر ولاړ دے یمه نمر ته ولاړ

جانان مِ هم ورک شو کوڅه ئے رانه هم ورکه شوه
اوس کله چرته یم ولاړ او کله چرته ولاړ

لکه دَ بت مِ حیرانئ کړے سترګے وازے پاتے
لکه دَ مړی یم تالا والا ګودر ته ولاړ

خدایه دَ خپل درباره، خپل دره مِ مهٔ اوباسه
زهٔ خو په ټول ژوند کښ هم نهٔ یمه هر در ته ولاړ

دَ پښتنے مینے احساس ناستی ته پرېښی نهٔ یو
یو په دیدن کښ دَ یو بل نه بیرته بیرته ولاړ

ما دَ زړهٔ درد چرے دَ زړهٔ نه بهر پریښے نهٔ دے
په رهګذر نهٔ یمه هیڅ کله دلبر ته ولاړ

احساس مِ یوسی په هر وران کلی مِ اوګرځوی
چرته بُتکی ته یم ولاړ، چرته کنډر ته ولاړ

خبر دِ هم نهٔ کړم په ځان زیر و زبر دِ کړمه
لکه دِ زیر به ومه ستا دَ قامت زور ته ولاړ

په خپلو سترګو دَ پردو سترګو ګمان کومه
اوس چه یم کله نظارے دَ پېښور ته ولاړ

چه نهٔ ئے تهٔ، دَ **سائل** روح به وی روژه نیولے
په کومو سترګو به یم میاشتے دَ اختر ته ولاړ

سترګے چه بیمارے شی نرګس شی لیونو
څوک خو ئے راټول کړی چه تس نس شی لیونو

بیا هم کۀ پریوځی نو په سترګو کښ پریوځی
ګل کۀ پاڼړے پاڼړے شی خس خس شی لیونو
څوک هم چه دَ ذات دَ کوره اوځی لیونے شی
شی خو لیونے خو د اولس شی لیونو
مینه چه بازار ته شی سودا ته شی ساه ورکړی
مینه چه تخلیق شی یو په لس شی لیونو
مات چه شی په چا دَ مهربانه نظر ستوری
هله تن بدن سنګ پارس شی لیونو
څۀ سوز خو لری چه اور دَ خپله ځانه اخلی
او سوزی دَ ځانه چه ققنس شی لیونو

سترګو له مِ راشی دَ **سائل** دَ غزل اوښکے
وخت چه دَ یارانو دَ مجلس شی لیونو

۱۲م اکتوبر ۲۰۰۷ء

په ډیره خاموشئ کښې هم ګویانه دے جانان
دَ ګل کۀ دَ غزل دَ خاندانه دے جانان

راتول مِ دَ لفظونو دَ معنو په غیږ کښې نۀ کۀ
په خپل ښائست کښې داسې پریشانه دے جانان
زړګے مِ لا په هره لار دَ قتل نه بوږنیږی
ډیر لرے مِ دَ مینے د امکانه دے جانان
دَ هر سړی یقین په مینه داسے ټکنړے شۀ
دَ مینے په وطن کښې بے جانانه دے جانان
په دومره پښتونخوا کښې هیچا ځائے په زړۀ ورنۀ کۀ
رالوتے دَ وږمے دَ ګلستانه دے جانان
سنګارئے په جولئ دَ فکر و فن کښې نۀ ځائیږی
راغلے دَ فطرت دَ لامکانه دے جانان

یوازے زۀ **سائل** لیونے نۀ یم په دے ښار کښې
هر څوک چغے وهی چه دَ ارمانه دے جانان

❀❀❀

الــــوتے لــــولکئ دی اشـــارے لیونیـــه
پـه لاسـو کښ ئے څـوک شـی رانیـوے لیونیه

اے مـۀ وینـه پـه ویښـه دَ خوبـانو، خوبونـه
پـه غرونـو بـه دِ سـر کـړی لیـونے، لیونیـه
ړندے به دِ کړی سترګے چه ډیر ډیر ورته ګورے
بـے واکـه وی دَ سـترګو پلوشـے، لیونیـه
فطـرت چـه پـټ پټـونی پـه پټـو کښ کـوی
پاګـل بـه دے کـړی داسے تماشـے، لیونیـه
رنګـین دی جـادوګر دی دَ دامـانو ګلونـه
پـه چـل کښ بـه در پـورے کـړی لمبے، لیونیه
نۀ کانړے څوک راولی، نۀ څوک ګل دے کوڅه کښ
تـر څـو بـه پـه سـر خـاورے بـادوے، لیونیـه

**ســـائله** دی تصـویر جـوړول ګـران دَ جانـان
څـۀ کرښـے ورانـوے، څـۀ جـوړوے، لیونیـه

❀❀❀

بدن په زوړ قالب کښې نوی خیال ته چرته رسی
سرۀ چه دَ اوره نۀ شی تیر کمال ته چرته رسی

داغ په زړۀ ښکلے ښکاری، زړۀ په داغ دَ داغه ښکلے
خو دَ حسین جانان دَ زنے خال ته چرته رسی
په ورک جانان پسے کور کور کوڅه کوڅه لټول
چه بنجارے نۀ شی سړے وصال ته چرته رسی
سپرلے، ګلشن، ګل او ګلزار، حورے غلمان او جنت
دَ محبت دَ انتخاب جمال ته چرته رسی
دَ بوډئ تال په رنګ کښې ډوب سړے اسمان ته وړی خو
دَ لونګینو دَ لونګو تال ته چرته رسی
مونږه بائیللے دے نظر زمونږه لاس واړۀ دی
دَ محبوبے دَ قلا لوړ دیوال ته چرته رسی

موسم کۀ شی شمال او جانانۀ جانانۀ
ولے **سائله** دَ وربل شمال ته چرته رسی

❀❀❀

زما نه خپل جانان وطن په خپل سحر کښې ورک شو
لکه چه ځان رانه په سترګو دَ دلبر کښې ورک شو

خال دِ پرے داغ جوړ کۀ، بنړو دِ پرے پرهر جوړ کۀ
زړۀ خو مِ اوس هم شته خو داغ مِ په پرهر کښې ورک شو
زما نظر او ستا تصویر اور دَ یو بل نه واخست
خدایه دا څۀ اوشو نظر مِ په نظر کښې ورک شو
مازیګرے راشی خاموش تیر شی په غرونو واوړی
شړنګ دَ بنګړو شرق د پائیزیبو په ګودر کښې ورک شی
ګل رالـه راوړیٔ کۀ ئے دے چرته پیدا کړی پکښې
رانه مات شوے یو ازغے دَ زړۀ په سر کښې ورک شو
مـا دَ اور اور جـذبو نـه ډک بـدن دَ میـنے لـرۀ
مانـه زمـا دَ بے وسئ پـه سـمندر کښې ورک شـو

څـومره بـلا بـلا خوبـانو پـرے دعـوه لرلـه
هغـه **سائل** دَ یو منکر جانـان پـه در کښې ورک شـو

۞۞۞

# ترون

تاله سحر دَ محبت دَ گل په شان غواړم
ستا په رومبی نظر دَ سرو گلو باران غواړم

چرته غوټئی موسکئی او چرته گلاب خور په خندا
زهٔ خو سپرلے هم په مثال دَ خپل جانان غواړم

ډیرے ناړامه سیلئی الوزی سرتوره نهٔ شے
ملوکے خیر دِ دَ ښائست دَ گلستان غواړم

ما په دے کلکو زنځیرونو بند په بند اوتړهٔ
ځان تر قیامته ستا په زلفو بندیوان غواړم

دَ محبت دَ ولولو دَ سمندر لهرونه
تل ستا دَ سترگو دَ خمار په دشت روان غواړم

چہ تالہ ھرہ شپہ ستا زمکے تہ راځی لوبو لہ
ستوری سپوږمئ دِ پہ انګنړ کښں دَ آسمان غواړم

پہ دے جھان کښں بہ ګل ستا دَ روح اونۀ غوړیږی
زۀ پہ دے شتہ جھان کښں ستا خیال لہ جھان غواړم

بیړئے منم بندے ولاړے دی دَ ژوند پہ ګودر
خو یو رنړا پہ ناممکن کښں دَ امکان غواړم

څۀ دی حالات، زړۀ ډوبے ډوبے تورے تورے تیارے
بریښنا بریښنا جبین دَ خپل ماہ تابان غواړم

ستا دَ **سائل** شاعری رنګ ستا دَ تصویر دَ سترګو
پہ آئینہ کښں دِ سنګار دَ خپل ارمان غواړم

زما نه مینه واخلهٔ غاړه واخلهٔ
هر خوا چه ځې درسره دواړه واخلهٔ

ماسره هیڅ نشته بیا هم څهٔ چه دی
جانانه دا درسره واړه واخلهٔ
پریږده بنګلې او دَ بنګلو ګلونه
دَ محبت دنیا ویجاړه واخلهٔ
ژبه دَ سترګو دَ خبرو زده کهٔ
سلام په منډه په ولاړه واخلهٔ
نن ئې په دې تپه کښې اوې راته
په اجاره دَ ګودر غاړه واخلهٔ
پردی ګلونه ګلشنونه پریږده
مزه دَ خپل وطن دَ کاړه واخلهٔ
په پردو شونډو تنده نهٔ ماتیږی
بوسه د دې شونډو دَ پاړه واخلهٔ

کله خو تهٔ هم لګې شونډې سپړه
**سائله** څهٔ چه غواړې غواړه واخلهٔ

۱۴م مئ ۲۰۱۲ء په لاره لاره

اولس جانان کۀ نو دَ ټول اولس جانان به شي
راشه پخپله خاوره اودريږه آسمان به شي

دَ ژوند په شور کښې ځنې ځنې آوازونه اوره
کۀ ناست ئې پا به څې کۀ پاڅيدې روان به شې

په تنهائي کښې وي بې دره بې د ياره سړے
دَ زړونو کور کلي له راشه نو ودان به شې

ستوري خالونه په تندو کۀ دَ وطن دَ ښکلو
تيرے دِ نۀ شي پټولے چراغان به شي

دَ پردي سوري نه پخپلو سرو غرمو کښې ښه ئې
دلته به ډير گران ئې کۀ هلته شوې ارزان به شې

دَ خپل پرهر دَ درد دَ سرو گلونو ژبه زده کۀ
گل به پخپله شې دَ گل دَ خاندان به شې

ماتول هیخ نۀ دی مشکل دَ نفرتونو پولے
دَ مینے لار واخلۀ یقین بہ شے ایمان بہ شے

بیا بہ تمبیرږی دَ پلکونو گزارونہ درنہ
دَ ستمگرو مینہ اوکہ نو سندان بہ شے

ئے خو افغان خو دَ دے خپل نوم نہ بگنیږے ولے
پہ آئینہ کښں ځان تہ اوگورہ افغان بہ شے

تۀ چہ ازغے ئے نو ازغے خو دَ گل کار نۀ کوی
دَ گلو تخم شہ نو گل او گلستان بہ شے

سترگے پیدا کۀ دَ ژوندون دَ حقیقت لیدو لہ
تۀ کۀ تیارۀ هم ئے دَ نمر غوندے روښان بہ شے

یا بنجارے شہ یا ملنگ دَ پښتنو دَ کوځو
**سائلہ** دا اعزاز حاصل کۀ شاہ جهان بہ شے

❀❀❀

دَ ژوند پہ دار دِ اودرولے یم پښتون ارمانہ
پہ دے قاتل ماحول کښې دَ ژوندون ارمانہ

پرون دِ ھم تنہئ تنہئ گریوان ؤ پروت پہ سینہ
نن دِ ھم سرۂ سینہ پہ وینو دَ پرون ارمانہ

ھر څوک دِ ھر راتہو کیدلی گل تہ اور لگوی
دَ پښتنو دَ زرغون شوی سباوون ارمانہ

دَ دے دنیا دَ شب پرستو ډلہ لویہ شولہ
دَ ھر طرف نہ ستا پہ خونہ دے شب خون ارمانہ

زۂ ئے پہ زړۂ پورے نیولے ورم اودریږمہ نۂ
حالات زما نہ جذبہ تروړی دَ بدلون ارمانہ

پہ زړۂ مِ داغ اوسہ مسکے اوسہ چہ مړاوے نۂ شے
لکہ ریدے مِ کړلے لوئے پہ ځیگر خون ارمانہ

شپه بلا لویه ده، بلا مزل په سر پاتے دے
شوګیروم دے دَ خوبونو په زنګون ارمانه

سترګو مِ هم دا دی په وینو سرے جامے اغوستی
زما په خپلو پاکو وینو کښ ګلګون ارمانه

غرِ مِ زخمی دے خو چه ورک قام به ئے واوری کۀ نۀ
زما په زړۀ کښ دَ تړون او دَ پاخون ارمانه

دَ پیر روښان، دَ خوشحال خان، دَ باچا خان په خاطر
ماله جذبه راکه دِ نوی زړۀ چاؤدون ارمانه

یوه تپه مِ کۀ خو هر غور ته مِ اورسوه
زما دَ خپل لیلے لیلے وطن مجنون ارمانه

بیرته به راشم ستا **سائل** به تاته اوسپارمه
ورک یم په ځان پسے دَ خپل ځان په لټون ارمانه

❀❀❀

زما دَ ژوند تصویر په خپل زړۀ کښ سنبال ساتۀ
ډیرمِ وارۀ دی ارمانونه لګ پرے خیال ساتۀ

رنګ او رنړا ورله زما دَ زړۀ دَ داغه اخلۀ
دے لاله زار له چه راځے په جبین خال ساته
کۀ په غرمو کۀ په لمبو کښ وی دَ مینے خیاله
دَ انتظار سوے دَ جانان پورے اتهال ساتۀ
تیره وی ډیر دَ نالیدلو ازغو پټ دړدونه
لړے په خیال ګوتے دَ ګلو په دیوال ساتۀ
کۀ لاله زار شی کۀ سالو سالو دَ زړۀ دشتونه
دسمالے کیږی پرهرونو له دسمال ساتۀ
ډیر وی درانۀ پردی رازونه پخپل زړۀ کرځول
کۀ په همراز یقین لرلے شے همخیال ساتۀ
جان بے ابرو دِ نۀ کړی، دا دَ نن ګستاخے سیلئے
په ډیر هنر ګورئے عظمت دَ خپل جمال ساتۀ

**سائله** مۀ زانګه دَ دے جواب دَ طمعے په تهال
خو تۀ په خپلو لیونو سرګو کښ سوال ساتۀ

❀❀❀

سازونه چه غمژن شی او غمژنے شی سندرے
په زړونو باندے اولګی شتهٔ منے شی سندرے

ورتے چه شی دَ هجر په ورتو ورتو لمبو کښ
نور خلک په دړد پوئے کړی چه دړمنے شی سندرے

څهٔ ډیر دَ ځان ځانئے دَ کفر دور شو ملګرو
په داسے وخت کښ غتے پیرزوینے شی سندرے

آخر مونږه به ځان ځان ته په کومو سترګو ګورو
زمونږ نه چه په سرو اوښکو پښتنے شی سندرے

مونږ تول چه هم دَ مینے هم سندرے قاتلان یو
محسوس به ئے کړو څنګه کهٔ غوښتنے شی سندرے

**سائله** ژوندون ګران شی په هغے کلی محلت کښ
په کوم کلی محلت کښ چه دشمنے شی سندرے

❀❀❀

ورانې مې په مخ دَ اوښکو لاړې کړې او لاړۀ شي
خوږ زړۀ مې په مړو بڼړو نوکارې کړې او لاړۀ شي

راشي حواله مې خبر لوڅې تنهايئې ته کړې
ناستې په بتکې کوترې پارې کړې او لاړۀ شي
راشي او دَ ليچو نه ګجرې دَ ګلو اوباسي
ماته ئې جولئې ته راګزارې کړې او لاړۀ شي
راشي او دَ قهر نه په مخ زلفې راخندۀ وهي
نوې زولنې راته تيارې کړې او لاړۀ شي
راشي او دَ سترګو ريدي ګلې مې په زړۀ کيدي
سترګې مې نرګس هسې بيمارې کړې او لاړۀ شي
راشي او وسعت راله پيدا په فاصلو کښې کړي
تولې خوش فهمئ راله هوښيارې کړې او لاړۀ شي
راشي او راخخ مې کړي په چاؤدو شونډو اور نظر
خپلې ليونئې سترګې خمارې کړې او لاړۀ شي

راشي دَ **سائل** دَ زړۀ پولئې په تق تق ماتې کړې
خوب ورې جذبې ورته بيدارې کړې او لاړۀ شي

❀❀❀

داؤ دِ کرم په یو نظر زړګیه جوارګره
په زما مئینه لیونیه جوارګره

او بائله تصویر خو تصور ئې رانه مهٔ بائیلهٔ
په په جوارئې ناسته لالیه جوارګره
نن دِ بیا په پیغلو امانی ګلونه اوشیندل
په زما دَ دشتو پسرلیه جوارګره
سپارې محبت دَ محبت په دشمنانو
په زما سادهٔ ځلمیه جوارګره
تش په لنګ کښې بس کهٔ نو هم پاتې به سړې شې
دومره خو کولې شې سړیه جوارګره
څهٔ نه څهٔ خو مونږ ته هم دَ ژوند رنګونه پریدهٔ
په دَ ژوندون رنګه ګلالیه جوارګره

تهٔ چه هر څهٔ ئې دَ خپل **سائل** سترګو کښې اوسه
په زما قاتله په زړګیه جوارګره

❀❀❀

# دَ ماشومانو سندره

مائے دَ ستورو نه په زور راتختولے ګوډئے
یه زما ښکلے ګوډئے، ښکلے ګوډئے ښکلے ګوډئے

ما لکه ګل دَ ګل دَ څانګے شوکولے ګوډئے
یه زما ښکلے ګوډئے، ښکلے ګوډئے ښکلے ګوډئے

راځه چه لوبے اوکو دواړه ګوډئے
زار ګوډئے ښکلے ګوډئے
کینه خوند نۀ کئ په ولاړه ګوډئے
زار ګوډئے ښکلے ګوډئے

تۀ پرون چرته وے دَ چا سره وے تلے ګوډئے
یه زما ښکلے ګوډئے، ښکلے ګوډئے ښکلے ګوډئے

چه زۀ او تۀ وے نور څۀ نۀ وے ګوډئے
زار ګوډئے ښکلے ګوډئے
هر څوک زمونږ په تماشه وے ګوډئے
زار ګوډئے ښکلے ګوډئے

تا شونده سرے کړے ما دِ سترګے تورولے ګوډئے
یه زما ښکلے ګوډئے، ښکلَے ګوډئے ښکلے ګوډئے

زمونږ په چم کښ به وادهٔ وی ګوډئے
زار ګوډئے ښکلے ګوډئے
پکښ راغونده به ټول وارهٔ وی ګوډئے
زار ګوډئے ښکلے ګوډئے

وړو به نکریزے وی وارهٔ به ډلے ډلے ګوډئے
یه زما ښکلے ګوډئے، ښکلے ګوډئے ښکلے ګوډئے

په هر طرف به تماشے وی ګوډئے
زار ګوډئے ښکلے ګوډئے
زمونږ جامے به سرے لمبے وی ګوډئے
زار ګوډئے ښکلے ګوډئے

چا به اغوستے غرغرے وی چا بخملے ګوډئے
یه زما ښکلے ګوډئے، ښکلے ګوډئے، ښکلے ګوډئے

څوک به وادهٔ، څوک به ودیږی ګوډئے
زار ګوډئے ښکلے ګوډئے

پـکښ بـه لـوئے وادۀ کـړ یږی گـودئے
زار گـوډئے ښـکلے گـوډئے

وی بــه جــذبے لکــه لــولکے الــوتلے گــوډئے
یه زما ښـکلے گـوډئے، ښـکلے گـوډئے، ښـکلے گـوډئے

وئ به په تمبل کښ سندرے گـوډئے
زار گـوډئے ښـکلے گـوډئے
مئیــنے جونــه زور ورے گــوډئے
زار گـوډئے ښـکلے گـوډئے

وی بــه چــاپیره آوازونــه بلــے بلــے گــوډئے
یه زما ښـکلے گـوډئے، ښـکلے گـوډئے، ښـکلے گـوډئے

پہ نہ خندا کښې دِ پہ شونډو کښې خندا جوړہ کړۀ
ماتہ دِ یہ ښکلیہ گرانہ خامخا جوړہ کړۀ

چہ ستا پہ یاد کښې زۀ یوہ سندرہ هم اولیکم
پہ زړۀ کښې وایم دا خو ما نوے دنیا جوړہ کړۀ
تا دَ شپیے اوښکے دَ گلاب پہ مخ راځنډ وهلے
تا وے شبنم دے ما ترِ تول ژوند لہ رنړا جوړہ کړۀ
خدائے وو دِ دے دنیا ترون پہ نوم دَ مینے کړے
چہ مینہ خلکو تہ شوہ خلکو ترِ گناہ جوړہ کړۀ
حسن دِ لگ خور وۀ چہ زلفے دَ پرے هم خورے کړے
تۀ خو پرے لوبے کوے مالہ دِ سودا جوړہ کړۀ
دا زلزلہ راغلۀ کۀ ستا دَ خپو ښکالو اورمہ
یرہ دا ولے مِ بے وارہ زړۀ درزا جوړہ کړۀ

تا شائد هر چاتہ پہ دغسے نظر ورکتل
ستا دا کتل څۀ وۀ **سائل** ترِ تمنا جوړہ کړۀ

❀❀❀

تـۀ ځـان لـه تماشـه وے دَ ګلونـو پـه جـامو کښې
زۀ ځـان لـه وؤم ګـلاب دَ پرهرونـو پـه جـامو کښې

ستا ياد دَ سرو لمبو، سرو غرغندو مازيګرے وؤ
مـا کـړے انتظـار وؤ دَ اورونـو پـه جـامو کښې

تـل وړی، زمـا دَ ويخـو ويخـو سترګو نـه خوبونـه
سـتا سـترګے خوبـولے دَ خوبونـو پـه جـامو کښې

زمـا او سـتا دَ ميـنے ليـونئے سـندرے غـوا ړی
سـپرلے دَ فطرتونـو دَ رنګونـو پـه جـامو کښې

زۀ مست لکه "ريدے" يم دَ داغونو پـه جـامو کښې
تـۀ خـوب لکـه دَ ګـل ئے دَ خـالونو پـه جـامو کښې

تـا وے راتـه **سـائله** دا تـۀ چرتـه رانـه ورک شے
مـا تـۀ سـنګارولے دَ خيـالونو پـه جـامو کښې

جون ۲۰۱۲ء

خدایه چه نن خو مِ دَ چرته نه جانان راولے
چه جانان راشی په شبو شبو باران راولے

چه نمر سپوږمۍ هم ورله لوبو له راتلۀ اوغواړی
خدایه څۀ داسے پسرلے په ګلستان راولے
چه ځان له ځان له دَ خالونو نه رنړا یوسی
خدایه زمونږ محفل ته ستوری دَ آسمان راولے
هسے مِ نه تلے دَ زخمونو دَ انګنړ نه تیرے
هسے مِ نۀ وے چه زما ماه تابان راولے
دَ دے سمسورو ګل دامانو دَ خاطره بخته
زما حسرت زما ارزو زما ارمان راولے
زما دَ زیړ رنګ نه زما جانان خوندونه اخلی
خدایه په دۀ باندے سپرلے په ما خزان راولے

**سائل** خو مینه دَ نفرت دَپاره نه وه کړے
خدایه په هغو شوندو هم چرته قربان راولے

❀❀❀

جانان په یو لاس کښې لمبه په بل کښې ګل راکوی
ما تر قربان کړے چه رنګونه دَ غزل راکوی

نور به په لار دَ زړۀ دَ وینو څاڅکی نۀ شمارمه
چه دَ بنړو په څوکو نښه دَ منزل راکوی
ما لکه ګل لوبې دَ زړۀ په پرهرونو کړی
جانان به ماله خامخا څائے په وربل راکوی
وا به ئے نۀ خلم زۀ دَ خپل ارمان جذبه پیژنم
کۀ څوک جنت دَ یار دَ سترګو په بدل راکوی
دَ اوښکو رنګ دَ زړۀ په وینو کښې ګډوډ ورکوؤم
بیا به څۀ وائے چه تصویر نامکمل راکوی
سترګے ئے بیرته په هغے ګوټ پیر راواړولے
یو داغ دَ څوک زړګی دَ داغ دَ پاسه بل راکوی

**سائله** ځان آزادول تر لوبے توقے نۀ دی
دَ زلفو هر ول ئے زما مرئے له ول راکوی

❀❀❀

چه دلداري زدهٔ کوؤم غيرېږے دَ دلبر له راشم
چه دلبر ستايمه دَ خپل غزل هنر له راشم

لکه دَ درد دَ خپل پرهر دَ غيرېږے والوزمه
حالات مِ ژوبل کړي په بيرته خپل پرهر له راشم
لکه دَ نمر ورپسے تولـه ورځ دنيا چنړ کړمه
خو چه زيړېږے مازيګرے شمه ګودر له راشم
چه دَ حالاتو سره نوي جنګ ته ځان جوړوؤم
ستا دے قاتل قاتل کاواک کاواک نظر له راشم
لکه دَ شور دَ خاموشئے شونډو کښې نهٔ ځائيږم
زهٔ دَ ژوندون دَ پاره ستا دَ شونډو شر له راشم
لکه ګلاب په اوښکو اوينځم بيدار زخمونه
چه تصور دَ خپل اودهٔ اودهٔ سحر له راشم
دَ خيال مارغهٔ يمه لمبو په سر اخستے يمه
چه کوم چنار له دَ وطن کوم يو نښتر له راشم

چه ستا نه بيل يمه **سائل** يم لکه خاورے ايرے
شمه باچا چه ستا کوځے له او ستا در له راشم

۞۞۞

داسے مِ کلک پہ زړګی لیک دے دَ جانان تصویر
زړۀ بہ مِ وران شی کۀ دَ زړۀ نہ مِ کۀ وران تصویر

زړګی مِ وانۀ خستو شکل دَ یقین دَ تصویر
چہ ستا دَ زړۀ نہ مِ وران نۀ کړو دَ ګمان تصویر

ځان تہ حیران یمہ، چہ زۀ ځان تہ حیران ولے یم
ماتہ دی داسے راکتلی ستا حیران تصویر

پہ لاس کښں نۀ راځی پہ څۀ ھنر ئے لاس تہ کړمہ
داسے مِ تار تار دے دَ تار پہ تار ګریوان تصویر

پہ دے لمبہ لمبہ منظر کښں مِ اور اور سترګو تہ
ښومرہ حسین ښکاری دَ ګلو دَ باران تصویر

چہ ئے جنون ستا دَ نظر راتولولے نۀ شی
تا خپل **سائل** کۀ یارہ داسے پریشان تصویر

❀❀❀

دا دَ سائل زړۀ دے په دے کښې به لمبے هم وي
په دے لمبو کښې به جانان جانان سپرلے هم وي

خدايه په هر ځائے کښې دَ سکنړو ښکلو تخم ډير کړے
چه دَ هر چا په ديوال يو نيم کشمالے هم وي
ستا په اقرار کښې دے انکار او په انکار کښې اقرار
ما اوريدلي چه دَ ګل سره ازغے هم وي
زړونه بائيلل اسان دي زړونه ګټل ډير ګران دي
دَ محبت په جوارئے ناست ليونے هم وي
هجر کافر مسلمانئے ته ښکلي هم نۀ پريږدي
دَ جانان ګل شونډو نيولے يو پترے هم وي
ماته حيران حيران زير زير وارخطا ولے ګورے
چه باران نۀ کيږي نو مړاوے منجرے هم وي

**سائله** ګل دَ مينے صرف په ښتياؤ پائي
په تصويرونو کښې خو رقص هم وي نغمے هم وي

۸م جولائی ۲۰۱۲ء

دَ زړهٔ بـازار مِ غورېـدلے هـم دے وران هـم دے
چه بے جانانه دے سپرلے هم دے خزان هم دے

حسن خور وژر دے چرته چرته پسے منډه اوکړم
حيـران ولاړ روح مِ ولاړ هـم دے روان هـم دے
زهٔ ستا آواز اورمه درځم خو آخر چرتـه درشم
چـا پيره تکنـړه غرمــه ده بيابـــان هـم دے
دا راتـه چـا اوکاتـهٔ دا سـالو دَ چـا ښـکاره شـو
دا چـه پـه هـر طرف لمبے هم دی باران هم دے
موندے هيچا نهٔ دے په دے بے قرارئے کښ قرار
کهٔ محبت دَ ژوند حاصل دے نو ارمان هم دے
دَ دے معيار کهٔ دے نو دے ښـکلا ښکلا او مينه
دلته کښ هر څوک ملنګ هم دے شاه جهان هم دے
دَ پښتنو مئينو خپل خواکهٔ دی خپل درانهٔ دی
دلتـه هـر څـوک بـلا هوښيار بـلا نـادان هـم دے

**سائل** ته صرف څوک پـه سترګه دَ سائل مهٔ ګـورئے
**سائل** سائل دے خو دَ ډيرو زړونـو خان هـم دے

۱۲م جولائی ۲۰۱۲ء

ستا دَ خال شغله شغله رنړا دَ قیامتونو وه
ستا هره وړۀ لویه ادا دَ قیامتونو وه

خپله ستا دَ زړۀ درزا به خنګ تصویر کومه زۀ
ستا خو دَ تصویر دَ زړۀ درزا دَ قیامتونو وه
نن د دِ جبین نه زلفے یو خوا بل خوا شوے وے
نن خو په وریځو کښې بریښنا دَ قیامتونو وه
تۀ خو سپرلی وچ په زور واپس راستنولے شے
ستا خو په خبرو کښې خندا دَ قیامتونو وه
ځان ته چه مِ اوکاتۀ خپل ځان راسره هم نۀ وؤ
ستا دَ محبت دَ غم سودا دَ قیامتونو وه
وؤ به په دنیا کښې به هم ښکلی وؤ ښائست به وؤ
وؤ خو په دے باب کښې پښتونخوا دَ قیامتونو وه

یه **سائله** دا سپرلے او دا مینه او دا جانان
خور پرے لاله زار شۀ وؤ صحرا دَ قیامتونو وه

یکم جولائی ۲۰۱۲ء

لگ دَ گزارے لگ دَ گزران شه جانانه
بس دے کنه اوس خو مِ جانان شه جانانه

گرانه به شی گرانه دَ جذبو نه مِ گرانیږه مهٔ
ډیر دَ گرانیدو نهٔ یم اسان شه جانانه
ستا دَ یاد گلونه مِ دَ زړهٔ په دشت کښ اوچ نهٔ شی
بیا پرے په شبو شبو باران شه جانانه
مړ مِ کهٔ خو سترگے کهٔ په تلو کښ راستنے لږے
نن خو په ما دومره مهربان شه جانانه
گل چه کوم ارمان شی په ارمان دَ ریژولو وی
تهٔ مِ گل دَ مینے دَ ارمان شه جانانه
تهٔ لکه سپوږمئ زما دَ زړهٔ زمکے له راشه نن
تهٔ زما په سر باندے آسمان شه جانانه
کله ښاښکی ښاښکی کله شړق کږے وږے شبے
هر چرته چه ئے نو راروان شه جانانه

راؤړه دَ خپل زړهٔ درزا زما دَ زړهٔ درزا له نن
راشه دَ **سائل** دَ ژوند داستان شه جانانه

۲م اگست ۲۰۱۲ء

مونږ دَ سپرلی ذکر په ژبه دَ جانان کوؤ
لکه شبنم په ګل کښې وریت ژوند دَ هجران کوؤ

مونږه په هر موسم کښې جانانه نشت نیمګړی
مونږه په هر موسم کښې دغه یو ارمان کوؤ

صبا له بیا مو دَ وصال دَ شپې دَ یاد نیته ده
صبا به هوله شپه دَ اوښکو چراغان کوؤ

یو امتحان ختم کړو بل لا ختم شوې نۀ وی
تیارے هره ورځ دَ نوی امتحان کوؤ

دَ دشت دَ ګل تنده به ماته کړو دَ زړۀ په وینو
څو به په خواره خولۀ سوالونه دَ باران کوؤ

بـل شـان خـو وی دَ پښـتـونخوا دَ مئینـانو میـنـے
اوســو پــه زمکــه دیدنونــه پــه آســمان کــوؤ

حسن او ژوند، مینه او درد مو دَ یو لاس کوتے دی
ســودا دَ دړد هــم دَ گلونــو پــه دکــان کــوؤ

مـونږه دَ زړونـو پـه انگنړ کښ پـه غمژنـو نغمـو
مـونږه پـه زړونـو بانـدے چـور کـوؤ تـالان کـوؤ

مــونږه دَ فــن دَ تصــویرونو دَ دنیــا خلــک یــو
**سائله** مـونږ دَ خیـال پـه گوتـو کښ گزران کـوؤ

دَ گل خندا او کۀ دَ گل پہ شان ژوندون پہ کار دے
زړۀ سلامت ښۀ دے کۀ دا سے زړۀ چاؤدون پہ کار دے

ښکلی بلا دی خو دَ مینے پښتو نۀ پیژنی
دَ مینے یو جانان پہ کار دے خو پښتون پہ کار دے

زما دَ دے جذبے عنوان پہ کار دے رنګ او تصویر
دَ دے دنیا رنګ ستا دَ سترګو پہ مضمون پہ کار دے

تش سکون بے، بے قرارئے نہ یو بیمار تکے وی
دَ بے قرارہ زړۀ پہ غیرہ کښ سکون پہ کار دے

صبا مِ خود شتہ چہ مِ نن ھم شتہ پرون مِ ھم وؤ
زما صبا او زما نن لکہ پرون پہ کار دے

زما وطن زما جھان لکہ سادر دَ سپرلی
ستا دَ سالو غوندے ستا گل بدن گلگون پہ کار دے

دوارہ جهانه راته ښکاری په دے دوؤ سترګو کښ
لکه دَ کونډے ورته نر غونډے کونتون په کار دے

چه کړی زما افکار زما دَ ژوندانه سندرے
ماله زما دَ خپلے ژبے افلاطون په کار دے

ډیر دی لنډ پاری دی بے کاره دَ بدلون خیالونه
کۀ بدلون حق وی په خیالونو کښ بدلون په کار دے

دا انتشار او په جذبو کښ تضادات دَ څۀ دی
دا مونږ ته وائی په صفونو کښ سمون په کار دے

مینه درخو ، مینه شیرینه او لیلے په کار ده
مئین آدم، مئین فرهاد ، مئین مجنون په کار دے

خو یه **سائله** شوک به تاله درکړی تار دَ زلفو
په دغے تار دَ لیونو زړونو ترون په کار دے

❀❀❀

نمر به په یو لاس کښې په بل کښې به سپوږمئې درکوؤم
ویریږه مۀ جنون دَ نوې زندګئې درکوؤم

تۀ دَ آسمان دَ تال اووۀ لړونه لاسو ته کۀ
زۀ به شغرب او دَ مغرب پورې تالئې درکوؤم

ستا هوښیارئې راته راکړې سرېتوب دَ مینې
خو زۀ دَ دې نه لګ سبق دَ نادانئې درکوؤم

تا درې وړې کړۀ په یو نظر کتو آئینه
زیاتې کوؤم چه تاته نوم دَ ښاپیرئې درکوؤم

هغې "آدم" نغمه نغمه کۀ تا فرهاد لیونې
شرینې تاله به تصویر دَ درخانئې درکوؤم

عشق راته وې یوه تحفه کۀ زما هم قبوله
خوب په خنګل دَ شوګیرو دلئې دلئې درکوؤم

خال ئے پہ منځ دَ وریځو ګدم دَ زړۀ دَ ترمو وینو
زۀ غـازه نـۀ درکـوؤم حسـن دَ هسـتئے درکـوؤم

تـۀ چـه تـر څو دَ سقراط غونـد ے خبرے کوے
زۀ بـه تـر هغـے دَ ترښـو زهـرو پیـالئے درکـوؤم

دَ بربنـو ویـش چـه چـا کـوؤ هغـه هـم دغسـے وؤ
تـۀ راکـوه غمونـه زۀ بـه خوشـحالئے درکـوؤم

نـن چـه دِ لاس راکـۀ او مـا درنـه لاس اوتختـوؤ
ما وے خوګیږمه چه لاس پولئے پولئے درکوؤم

ماتـه خـو سـتا دَ دلبـرئے هنـر نیمګـړے ښـکاری
زۀ بـه هنـر تاتـه دَ نـوے دلـدارئے درکـوؤم

پـه زړۀ دِ وران مـۀ شـه تصـویر دَ پسـرلی **سـائله**
پـه تبسـم بـه اشـارے کلـئے کلـئے درکـوؤم

❀❀❀

گلاب گلاب دِ کړم گلاب دِ راکۀ
سوال مِ په زړۀ تیر شۀ جواب دِ راکۀ

زۀ دَ حساب په مضمون نۀ پوهیدم
تا ترِ حساب لر کۀ کتاب دِ راکۀ
تۀ په سندره کښې سلگو اونیوے
ماله دِ درد راکۀ رباب دِ راکۀ
سین سیلاب مینه تړقیدلے هجر
سراب دِ راکۀ خو دریاب دِ راکۀ
دا خو مِ لا ترِ شوندو اور واخستو
ما خو وے جام دَ مئینو تاب دِ راکۀ
دَ پریشانو زلفو خیال دِ راکۀ
خیال کۀ دِ راکۀ پیچ و تاب دِ راکۀ

دریاب دریاب دِ کړے **سائل** ته سترگے
دریاب دِ راکۀ خو غرقاب دِ راکۀ

❀❀❀

# زړهٔ ته

ما درته وې زما شاعر زړګیه
چې نهٔ ځو نهٔ ځو دغې ښار ته نهٔ ځو
څهٔ به تهٔ سوزې څهٔ به زهٔ سوزمه
دغې لمبو دغې انګار ته نهٔ ځو

خو تا به وې دا دَ ګلونو ښار دے
دا دَ وګمو او دَ رنګونو ښار دے
دلته دمه او خوری هر سترے نظر
دا دَ خوګو خوګو خوبونو ښار دے

دلته دَ زړهٔ دَ داغ په ګل وریږی
دَ پاغوندو هسې شبنم دَ جمال
دلته کښې هر نظر دَ مینې تحفه
دلته کښې دم دلته قدم دَ جمال

اوس مِ په ځان کښې رانغښتلے نهٔ شې
اوس راله اوښکې پاکولے نهٔ شې

۞۞۞

تاتــه مِ کولــه یــو خبــره رانــه هیــره شــوه
دا لکـه چـه جنـگ لـه تلمـه زغـره رانـه هیـره شـوه

مـال نـوی جهـان تـه بیـا دَ نـوے میـنے غـگ کـوۀ
دشـتے تــه چــه لاړمــه سـندره رانــه هیــره شــوه

مــا هــم دَ وړو ســره کــوتره خپلــه پــارۀ کــړه
درز مِ زړۀ نــارے کــۀ بــازیگره رانــه هیــره شــوه

داسے ستا دَ ژوند پـه لیـونئے قصـه کبن ورک شـومه
خپلــه لیــونئے قصــه دَ ســرۀ رانــه هیــره شــوه

ستا دَ خبرلوس یاد دَ موسکی موسکی تصویرنه زار
شــپه لکــه بــلا وه تــر ســحره رانــه هیــره شــوه

ستا **سائل** چه اوچ پاړونه ستا پـه شونډو اولیدل
خپلــه لیــونئے تبــه شــیبره رانــه هیــره شــوه

جولائی ۲۰۱۲ء پیښور

غیږے ورکوی مئین په دے ورځ دَ سحر نه پس
خلک په دیوال اولی نکریزے دَ اختر نه پس

ځنګه شی قلاره قلاری ځنګ تماشے خورے
ځنګه خاموشی شی په ګودر دَ مازیګر نه پس

اوس مِ دَ فطرت دَ طبیعت نه حیرانی نۀ ځی
ستا دَ هغے یو ماشوم حیران نظر نه پس

هغسے کاتۀ هغسے نوے لیونۍ سترګے
درد مِ کوو ستا دَ بنړو ذکر دَ پرهر نه پس

هیڅ پکښې جوړ ستا دَ غلا کولو دَ معیار نۀ وؤ
رانغلے دننه زما زړۀ ته دَ کنډر نه پس

رنګ خو دَ محفل هغه دوه سترګے وی چه دا نۀ وی
خوند به دَ محفل څۀ وی **سائله** دَ دلبر نه پس

❀❀❀

دلته په هر ګوټ پیر کښې یو نۀ یو قاتل ولاړ دے
هغلته دلته، دلته هلته عزرائیل ولاړ دے

هیڅ شے رپ نۀ وهی کۀ باد ؤ کۀ باران اودریدو
کۀ سمندر دے کۀ دریاب کۀ رودنیل ولاړ دے
دَ ژوندون هره لاره یو نۀ یو ګنړکپ نیولے
دَ کار په هره دروازه کښې یو جاهل ولاړ دے
ناویشتی خلک هم ترق پرق کوی ټوپونه وهی
هر چاته خپل احساس په مثل دَ بسمل ولاړ دے
لاس په موټئے، موټے ئے تش چه کړی څۀ اوکړی
قلبه ولاړه ده، دهقان حیران په کِل ولاړ دے
ځان دَ هر چانه داسے تښتی لکه سیورے دَ ځان
هر څوک دَ ځان سره په فکر کښې واصل ولاړ دے

دَ خاموشئے دَ تورے شپے دَ سر نشه ماتوی
دَ تنهائیئے دَ شپے په کومی کښې **سائل** ولاړ دے

❀❀❀

# محمد یار یار ته

زما شاعره لیونیه خطا کاره یاره
دَ خپلې رائې په ګناه بانده ې سنګساره یاره

ته په انکار کښې بوسه اخلې دَ اقراره یاره
ځار شمه ځار ستا دَ ساده ساده انکاره یاره

په دَ تازه تازه جمهور ړومبی ړومبی شهیده
ستا بې بها وینه به نۀ ځی بې بهاره یاره

ته ځان په یو قدم تر عرشه پورې مۀ رسوه
کینه قلار دَ درویشانو دَ رفتاره یاره

مونږ کۀ دَ اوښکو، کۀ دَ ګلو امیلونو یوسو
تش به راځو دَ جاګیرونو دَ بازاره یاره

شائد چه تا به لا تراوسه اوریدلی نۀ وی
دَ لویو لویه وی دَ خوارو برخه خواره یاره

ته دَ خوارانو برخې ژاړې دَ خوارئ په وخت کښې
خلک خو وائی، وی دَ خوارو برخه خواره یاره

دغه ګناه هم ناکافی ګناه خو نۀ ده کنه؟
چه دِ عاجزه نۀ وه ژبه دَ اظهاره یاره

يـــه دَ هيـــوا د دَ ويـــنـے تـــړم او تـــازه څاڅكيـــه
شائد سمسور شی ستا سنسار ستا دَ سنګساره يـاره
تـــا کـــۀ ګټلـی نـۀ دی هـــيڅ هغـــه بـــائللے نـــۀ ئـــے
چـه پـه خپـل قـام کښ سرے پريـوزی دَ اتبـاره يـاره
مونږ څۀ پـه ګرانه ځان دَ خلکو پـه قطار کښ ځائے کړو
خلـــک مـــو څـــۀ اســـان بهـــر کـــړی دَ قطـــاره يـــاره
دا لارے دغســـــے دی دا لارے بـــــه دغســـــے وی
تـــګ هـــم پـــه دے لارو دے، مـــۀ بـــدلوه لاره يـــاره
مـــالوچ راوړه خـــو دَ بـــولۍ وختونـــه مـــۀ هيـــروه
دَ خپـــل ښائســـته يوسف دَ حســـن خريـــداره يـــاره
دا دَ پيـــړو قيصـــے پـــه ورځـــو شپـــو کښ نـــۀ سپـــينيږی
خپـــل پيښـــور تـــه ځـــه راځـــه دَ کنـــدهاره يـــاره
تاســـره مـــنم دَ لفظونـــو لښـــکرونه شـــته دے
خـــو ډيـــر ئـــے مـــۀ پريـــږده بے واګـــو بے مهـــاره يـــاره
کـــار تـــه خيـــالونه او خيـــالونو تـــه خپـــل کـــار اوسپـــاره
يـــه پـــه خيـــالونو مـــزين غنـــی ســـرداره يـــاره
دَ خپـــل جانـــان وطـــن دَ نـــوے مـــرحلے پـــه خـــاطر
تـــول نظـــر واړوه هنـــر تـــه محمـــد يـــاره يـــاره

❀ ❀ ❀

کار چه دَ سپرلی هم دَ لمبې شی سرې څۀ اوکړی
زړۀ چه پکښ داغ لکه ریدې شی سرې څۀ اوکړی

ما خو راز دَ مینې پټ دَ ځانه هم ساتلے وؤ
اوښکې چه دَ سترګو نه راتوې شی سرې څۀ اوکړی
ما خو زړۀ په ډیرو پرهرونو کښ هم پټ کۀ خو
شونډې چه پاړ اونیسی پترې شی سرې څۀ اوکړی
نور کۀ راته خپل نۀ وائی حق لری پردې به یم
خپل ځان چه دَ خپل ځانه پردې شی سرې څۀ اوکړی
کرم هم دَ ګل کړے وؤ شوی هم ګلونه وؤ
ګل چه دِ په سترګو کښ ازغې شی سرې څۀ اوکړی
سترګې خو سرې داسې مدام ترلې هم نۀ شی
سترګې چه دَ چا په چا خوګې شی سرې څۀ اوکړی

مونږ خو انتخاب **سائله** کړے وؤ دَ نیغې لار
نیغې نیغې لارې چه کږې شی سرې څۀ اوکړی

۱۱م اپریل ۲۰۱۲ء

# اقبال

هغه دَ ژوند په حادثو کښې رالوئې شوے اقبال
هغه دَ ژوند دَ ليونتوب په لمبو سوے اقبال

هسې خو څورنده ؤ په خپل ډنډر ګلاب دَ پښتو
خو ورته خپل ژوندون کۀ تول لکه ورغوے اقبال

وړے يو فکر يو سودا ؤ اقبال
څومره په يو ځان کښې بلا ؤ اقبال

بلا ذهنونه ئې رنړا او ساتل
څومره روښانه او رنړا ؤ اقبال

دَ ذات په تنګ لوښي کښې نۀ ځائيدۀ
هر چا له څۀ خو دَ دنيا ؤ اقبال

خپلو سلګو ته ئې هم زده کړه پښتو
بها ئې نۀ وه بے بها ؤ اقبال

ناست دَ پښتو دَ نوم په ګل خزانه
په غريبئ کښې هم باچا ؤ اقبال

ځان ئے نزدے هم ځان ته پریښے نۀ دے
په مونږ ؤ مړ، زما او ستا ؤ اقبال

هر ذکر فکر کښې ئے غم دَ پښتو
دَ مردان نۀ، دَ پښتونخوا ؤ اقبال

دَ دے نومونو هیڅ کمے نشته دے
خو په دے ټولو کښې یکتا ؤ اقبال

زمونږ په مینه کښې شک هم کیدے شی
خو په رښتیا باندے رښتیا ؤ اقبال

مونږ هم پښتو وایو پښتو زوتوؤ
خو دَ اندیش غوندے جدا ؤ اقبال

ځوک ځۀ خبر شو په ما ځۀ او په جانان ځۀ اوشوُ
زمونږ دَ دواړو دَ شريکے په ارمان ځۀ اوشوُ

زما دَ اوښکو شبنمونه پکښې اوسوزيدل
خدائزده زما دَ ګل په لوند شانِ ګريوان ځۀ اوشوُ

تنهايئ ستړے کړم کۀ لږ مِ ترِ په پورته يوسى
برېوکئ ځۀ شوے دَ جنون په بيابان ځۀ اوشوُ

په دے کوڅو کښې دا زبيرګى او فريادونه ولے
يه ليونو مسيحا ځۀ شو، په درمان ځۀ اوشوُ

اوس پکښې نۀ اورمِ دَ مينے دردېدلے نغمے
زما دَ زړۀ په ژوبل ګلستان ځۀ اوشوُ

ډيره موده اوشوه چه ستورى دَ سپوږمئ انګنړ ته
لوبو له رانغلۀ، **سائله** په آسمان ځۀ اوشوُ

❀ ❀ ❀

پسرلے راشی تیر شی، مونږ پکښں دیدار اونۂ کو
ماسره فکر شی چه یو بل ته ازار اونۂ کو

زما او ستا دَ لیونو زړونو شریکه درزا
کۂ مونږ قلاره نۂ کو، مونږ به ترِ قرار اونۂ کو
منګے ئے سر ته کۂ په تلو کښں ئے همزولو ته وے
ګودر به څۂ کو چه دیدن پرے دَ سرکار اونۂ کو
په پولادی غرونو کښں سرو دشتو کښں لارے کوؤ
چه دَ جانان زړګی له راشو په کښں لار اونۂ کو
مونږ هره شپه ستا دَ خالونو ذکر فکر کوؤ
مونږه یوه شپه هم دَ زړۂ په لاله زار اونۂ کو
ستا دَ نظر ستا دَ بنړو دغه بے واره حملے
مونږ به جانانه ستا دَ دے کاره روزګار اونۂ کو

**سائله** ژوند به څۂ وی خوند به ئے څۂ، رنګ به ئے څۂ
چه په سندره کښں هم ذکر دَ دلدار اونۂ کو

۞۞۞

اوس رانه نۀ ځی نشه، دومره دِ خمار کړمه
په نرګسی بیمارو سترګو دِ بیمار کړمه

لکه ګلاب دَ یار دَ اوښکو په شبنم اودۀ وم
دا سیلئ چرته وه، دَ خوبه ئے بیدار کړمه
تۀ په ځان پویه نۀ شوے، زۀ دِ په ځان پویه نۀ کړم
نادان دِ څومره کړمه، څومره دِ هوښیار کړمه
تۀ دومره زر زر سترګے ولے پټوے غړوے؟
دومره زر څنګ درته دَ زړۀ داغونه شمار کړمه
زلفو دِ نۀ یمه دَ زلفو باد دِ اووهلم
چه باد ئے اووهلم هم ئے تار په تار کړمه
لا خو مِ نۀ وه تصویر کړے ستا دَ حسن قصه
ستا په خالی خاکه هم دے خلکو سنګسار کړمه
ما دِ په کومه بانه کوم لوظ باور اونۀ کۀ
جانانه هره ورځ دِ مړ په انتظار کړمه

جانانه نور به دِ ارمان دَ لونګین اورژی
چه زۀ **سائل** دے دَ لونګو خریدار کړمه

❀❀❀

# امن او جنګ

امن دَ سترګو نظر، جنګ دَ دے نظر قاتل دے
جنګ دَ سحر قاتل دے، جنګ دَ مازیګر قاتل دے

زما لکونه میاندے خوئندے ئے بے ستره کړلے
جنګ مِ دَ سوات قاتل دے، جنګ دَ پیښور قاتل دے

امن دَ ګل دَ خندا غیرَ ده، دَ سپرلی نغمه ده
جنګ دَ نغمے قاتل دے، جنګ دَ هر هنر قاتل دے

امن دَ غرونو دَ تازه هوا دَ لپے دعا
جنګ دَ هر غر دَ هرے سروے صنوبر قاتل دے

امن منګی په سر دَ پیغلو دَ قطار مصور
جنګ دَ چینے او دَ چینار او دَ کودر قاتل دے

امن دَ امن دَ معنٰی او دَ مفهوم تصویر دے
جنګ دَ تصویر دَ تصور او دَ منظر قاتل دے

امن دَ خدائے دَ تمامی مخلوق دَ ژوند ضمانت
جنګ دَ انسان دَ کائنات او بحر و بر قاتل دے

امن ضامن دَ هر ازاد انسان دَ علم و عمل
جنګ دَ ازاد انسان دَ هر فکر و نظر قاتل دے

امن دَ نمر په ځاځکی ځاځکی پلوشو کښې ژوندون
جنګ دَ رنړا دَ پلوشو قاتل دَ نمر قاتل دے

امن دَ ژوند دَ تقاضے، ژوند دَ بقاء نامه ده
جنګ دَ خپل ځان او خپل انجامه بے خبر قاتل دے

امن دنیا ده دَ خوبانو دَ خوبونو دَ خیال
جنګ دَ خوبانو دَ خوبونو دَ لښکر قاتل دے

امن دَ مینے دَ رشتے دستخط دَ ژوند په کاغذ
جنګ دَ دے مینے دَ رشتے دَ هر باور قاتل دے

امن زما دَ لر و بر دَ محبت حقیقت
جنګ مِ دَ ټولو پرګنو دَ لر و بر قاتل دے

امن زما دَ لښکرونو دَ شعور فلسفه
جنګ مِ دَ امن دَ لښکر دَ سر لښکر قاتل دے

دَ امن سترګو کښې جهان دَ اطمینان او سکون
جنګ بے قراره وارخطا اوتر اوتر قاتل دے

امن عالم ته غوړیدلے دسترخوان دَ خالق
دَ جنګ ټول خوی بوی دَ تخریب دے دَ بشر قاتل دے

امن دَ هر زنده سر ساه ده او دَ سر سیورے دے
جنګ دَ هر قسم زنده سر دَ ساه او سر قاتل دے

امن مرغئ په نغمو راولی دَ خیال په نغمو
جنګ دَ مرغو دَ چغیدو او شور و شر قاتل دے

وار دَ جنګ تیر شو ورکوی به ساه دَ امن غیږ کښ
جنګ کۀ هر څو مره ستم ګر او زورور قاتل دے

امن دَ رحم دَ حدونو نه بهر نۀ اوځی
جنګ دَ رحمونو دَ حدونو نه بهر قاتل دے

دَ امن غشے به ئے پویه کړی دَ دَرد په خوږو
جنګ کۀ هر څو لکه سلطان سکندر قاتل دے

جنګ هر څۀ اوخوری، ځان هم اوخوری امن نۀ شی خوړے
جنګ ځان په امن خوری، کۀ هر څومره نهر قاتل دے

امن دایم وی او دَ جنګ عمر دوام نۀ لری
قاتل بزدل وی هیڅوک نۀ وائی چه نر قاتل دے

امن دَ خدائے خوښ دے، دَ خدائے دَ مخلوق ژوند دے امن
جنګ خو وحشی دے، دَ امت دَ پیغمبر قاتل دے

❀❀❀

# دَ ژوند سندره

تۀ خو دَ خپل غرور او خپله ضده نۀ اورېدے
وا دِ ورېدے چه دِ زما خبرے نۀ اورېدے

په لمبو واؤرېدے په سرو گلو راواؤرېدے
تا چه دِ ژوند سندره اوے نو ما واؤرېدے

# دعا

خدايه په يو لاس کښې سپرلے، بل کښې گلاب غواړم
داسے په يو لاس کښې قلم، بل کښې کتاب غواړم

ښائست چه چرته دے او څومره دے په زړۀ کښې مِ دے
خو په دے خوښه کښې اختيار دَ انتخاب غواړم

❀❀❀

# سندره

ښکلې دَ زړونو زړونو لوبې کوي
پــــه زړونــــو لــــوبې کــــوي
لیونی څۀ په لیونو ګلونو لوبې کوي

خدایه دَ مینې په دے ګل هنر کښې څومره څۀ دي
هر څۀ چه دي هغه دَ هر څۀ نه خوارۀ خوارۀ دي
دَ الفتونــــو دَ خوبونــــو تصــــویرونه تراشــــل
پــه کــاڼو بوټــو دَ ازغــو پــه څوکــو تلــۀ راتلــۀ دي

څوک چه دَ دے غمونو لوبې کوي
پــــه زړونــــو لــــوبې کــــوي
لیونی څۀ په لیونو ګلونو لوبې کوي

خــپلے جــونګړے ورانــوي تریــنه مــانړۍ جــوړوي
دَ ښائســــتونو دَ ګلونــــو دَ خوبونــــو مــــانړۍ
مینے په خیال خیال کښې جهان دَ زندګۍ جوړوي
دَ لازوالــــه محبــــت، دَ بــــے پــــروا زنــــدګۍ

څۀ دَ عالي خيالونو لوبې کوي
په زړونو لوبې کوي
ليونې څۀ په ليونو ګلونو لوبې کوي

سحر ئې هر سحر دَ ګل او دَ شبنم قصه وي
ماازيګرې ئې دَ ديدن دَ سپرلي خوبونه
دَ سوؤ لوؤ روايا تو پاسداري پرې کوي
چه ځي نو وړي ګلونه بيرته ترې راوړي اورونه

دَ خيال په څو رنګونو لوبې کوي
په زړونو لوبې کوي
ليونې څۀ په ليونو ګلونو لوبې کوي

**سائله** دلته دَ لمحو په تار ترلې غوټې
دَ څومره ډيرو دنيا ګانو تصويرونه لري
په سترګو سترګو کښې قطره قطره سلام دَ مينې
لمبې لري او په لمبو کښې بهارونه لري

څوک چه په دې تالونو لوبې کوي
په زړونو لوبې کوي
ليونې څۀ په ليونو ګلونو لوبې کوي

❀❀❀

# یو منظر – یو نظاره

ستا یوه ادا وه چه بلا موده پرے تیره شوه
اوس مِ هم پـه زړهٔ بانـدے پرتـه ده راتـه خانـدی

ستا دَ خورو زلفو پـه شا ورک لیونے رونړ جبین
څـهٔ دَ ښوارلسمے سپوږمۍ شـپـه ده راتـه خانـدی

دَ تـولے شـپے دَ تنهـايئے ښـامار خـوړلے يمـه
نـۀ يـم خبـر سـحر تـه ځنـګ رارسـيدلے يمـه

زۀ ليـونے لکـه دَ خپـل زړګـى دَ داغ دَ رنـړا
سحر سـحر سـتا پـه خـالونو ځـيدلے يمـه
کۀ سيلاب نۀ جوړيدۀ دا اوښکے به چرته تللے
زۀ دَ پيـړو نـه پـه دے لارۀ ژړيـدلے يمـه
حسـن پخپلـه وى مرکـز دَ زلزلـو حـادثو
دلتـه کښ زۀ دَ حـادثو سـره راغلـے يمـه
دلتـه بـه تـل وى زنـدګى لکـه آواز دَ بنګـړو
زۀ دَ ښائسـت پـه ليچـو داسـے شرنګيدلے يمـه
اوشوے مود ے ځان لټوۀمه ځان مِ اونۀ موندو
خدائے خبر کومو سترګو کوم خوا تښتولے يمـه

دا چه دے خور په پښتونخوا ښائست په شان دَ بهار
**سـائله** دا زۀ مينـے هـر خواتـه شـندلے يمـه

❀❀❀

# سندره

خاورے او ایرے ئے دَ هر ګل په مخ لویدلے دی
دا دَ چا وطن دے، خدایه دا دَ چا وطن؟
ګل ګل سحرونه ئے په وینو لمبیدلی دی
دا دَ چا وطن دے، خدایه دا دَ چا وطن؟

هر ګل ئے په مات ډنډر بے تابه راپریوتے دے
خوږ دے خندیدے نهٔ شی
ګرد ئے دَ بارودو په تندی باندے الوتے دے
هیچا ته کتے نهٔ شی

خپل سپرلی پرے هم په اوښکو وینو ژړیدلی دی
دا دَ چا وطن دے، خدایه دا دَ چا وطن؟

هر خوا ئے دَ هر یو ګلاب پاڼړه پاڼړه غوټه ده
هیڅوک ورته نهٔ ګوری
خوا کښې ئے دَ هر یو ازغی هره شوکه پخه ده
هیڅوک ورته نهٔ ګوری

نۀ پرے چا نظر کړے نۀ چا ورته کتلی دی
دا دَ چا وطن دے، خدایه دا دَ چا وطن؟

دلته به یو قام ؤ، اوسیدو دَ پښتنو په نوم
ځۀ شو هغه چرته لاړ
دلته یو اولس ؤ دَ جمال دَ لیونو په نوم
ځۀ شو هغه چرته لاړ

هغه لیونی سپیلنی خلک چرته تلی دی
دا دَ چا وطن دے، خدایه دا دَ چا وطن؟

هغه لیونو چه یو تهذیب او یو تاریخ لرۀ
هغه پښتون چرته لاړ
ژوند کۀ ئې هر څو لکه دَ زهرو په شان تریخ لرۀ
هغه ژوندون چرته لاړ

داسے نو دَ خپل کلی محلت نه چرته تلی دی
دا دَ چا وطن دے، خدایه دا دَ چا وطن؟

❀❀❀

لفظونه شته، خو دَ لفظونو معنٰے ورکے دی
ساقی هم شته، میخانه هم شته پیمانے ورکے دی

شونډے زمونږه هسے تراړے تراړے نۀ دی تلی
زمونږ دَ شونډو نه دَ مینے ترانے ورکے دی
یو په دنیا کښ خو دنیا خو ورکه کړے ده مونږ
زمونږ دَ سترګو نه دَ سترګو آئینے ورکے دی
خالی تار پاتے یم په ګوتو کښ دَ مینے دَ خیال
خدایه دَ اوښکو دَ تسبو نه مِ دانے ورکے دی
سهر جادو اوس نۀ په ځان شم نۀ په بل کولے
مانه دَ ژوند دَ تصویرونو افسانے ورکے دی
زما نه ستا په شونډو ستا په جبین ستا په زنه
ستا دَ سکنړو سکنړو خالونو خزانے ورکے دی

دا چه په لاره ځی او ځائے په ځائے کینی او پاځی
ستا دَ **سائل** نه ستا دَ پلونو زمانے ورکے دی

۞۞۞

دَ دشتے ګل وؤم وچیدم به، شبنم نۀ وؤ باران هم رانغے
غرقه زړۀ ډوبے خاموشی وه، چرته غږ دَ جانان هم رانغے

دَ تاخانو په لاندے باندے دیوالونو کښ، ژوندون کوؤم یوازے یمه
کلونه تیر شو زمکه نۀ وینم، نظر ته آسمان هم رانغے

په زړۀ مِ یو تصویر جوړیږی، خو چه جوړ شی نو په خپله وران شی
چه دا دَ کوم ظالم جانان تصویر دے، جوړ نۀ شو وران هم رانغے

دَ هغے بُت خاموشو شونډو له مِ، تل تل دَ زړۀ ګرمے وینے ورکړے
خو په هغے بُت کښ دَ نیم تبسم، توان او ایمان هم رانغے

ستا نه چه بیل شوم نو یوازے شوم، خو داسے خو یوازے نۀ شوم
ستا یاد کۀ نۀ راتۀ نو نۀ به راتۀ، خواله ارمان هم رانغے

په نړیدلی زړۀ په اوښکو اوښکو سترګو کښ ملاله ژړیدلے ارزو
تندر راپرے نۀ وت **سائله** زلزله نۀ شوله، ځول او طوفان هم رانغے

❀❀❀

لکــــه یوســـف دَ کړمـــــار دِ کـــــړم
دَ کړمــــــاره راګــــــزار دِ کـــــــړم

زۀ خو ښکاری وؤمه په ښکار پسے تلم
خبــر دَ ځانــه نــۀ شــوم ښــکار دِ کــړم

تا خپلے سرے سرے سترګے څۀ پیژندے
پـــه زړۀ دننــــه لالـــه زار دِ کــــړم

اور مِ اخســـتے دے خـــو رپ نـــۀ وهـــم
مجســــــمه دَ انتظـــــار دِ کــــــړم

دَ مشـــرق ښـــکلے پښــتنے مئیــنے
پویـــه دَ میـــنے پـــه مایـــار دِ کـــړم

موســـم دِ واړوؤ دَ دشـــت پـــه بلـــه
یـــه دَ جانـــان خیالـــه بهـــار دِ کـــړم

هـــر خیـــال دِ څـــو زره تصـــویره لیـــدل
تصـــویر تصـــویر دِ کـــړم بـــازار دِ کـــړم

نور به دِ یو غم هم آزار نۀ کړمه
څۀ بې آزاره پامتدار دِ کړم

په مخه تلې په شاه دِ نۀ راکتل
دا دِ ګل راکۀ، کۀ سنګسار دِ کړم

ستا دَ سرو شونډو نه ئې غلا کړې ده
دَ سرو ګلونو پرستار دِ کړم

په پلوشو مِ هر سحر لمبوې
نمره دَ چا دَ کور چنار دِ کړم

دړد مِ دَ هرې فن پارې نه څاڅی
شول **سائل** وؤمه فنکار دِ کړم

# بے عنوانه

ما خو په یو لاس کښې سپړلے بل کښې ګلاب غوښتے وۀ
ژوند مې جانان جانان دَ شونډو په کتاب غوښتے وۀ

دَ پښتونخوا ښائست چه څومره وۀ په زړۀ کښې مې وۀ
خو ما اختیار پکښې دَ زړۀ دَ انتخاب غوښتے وۀ

څو غلچکو پښتون ارمان دَ مخ مروته زار کړو
ما خو پښتو غوښته پښتو له مې نصاب غوښتے وۀ

شپه چه مِ ستا دَ انتظار په بیابان اوکړۀ
دلته مِ سر سنړه دَ مینے دَ ارمان اوکړۀ

سحر دَ خوبه ډکے سترگے پاسیدمه
سترگو مِ ستا ثناء دَ اوښکو په باران اوکړۀ
تیرے به تورے وی خو ما به آخر څنگ پټوی
دَ بریخ دَ پړق په شان رنړا ماه تان اوکړۀ
سپوږمئ په غیږه کښں نن لوبو له دَ ستورو یوړم
ما مِ دَ کور دَ انگنړ مینه په آسمان اوکړۀ
چه چرته چرته رقابت وۀ هلته اور اولگید
ما چه خبره دَ خپل گل غوندے جانان اوکړۀ
په موده پس ئے شونډے پرانستے خندانے شونډے
زما په زړۀ ئے کرونده دَ گلستان اوکړۀ

خیال دَ جونگړے وی پخپله تاج محل سائله
کۀ تذکره چا دَ میکن او دَ مکان اوکړۀ

❀ ❀ ❀

ماضی او مستقبل، وطن او قام ثلور غمونه
دے ټولو ته مِ تل لوګے لوګے کړل نور غمونه

کۀ حسن چرته وی چه پرے دَ زلفو سورے اوکی
دَ زړۀ په دشت مِ ځی دَ پښتنو سرتور غمونه

راځئے چه پکښ تاب، چه پکښ توان دَ ژوند پیدا کړو
بے تابه دی زمونږ دَ تالا شوی کور غمونه

سپرلے د دَ سرو شونډو دَ خندا په شان راشی
پشان دِ دَ ګلونو مونږ له کړی سمسور غمونه

هم دا ورځ به زمونږ دَ ربستونے آزارئے وی
دَ خپل غمه چه بیل کړو دَ پردو دَ زور غمونه

اے خدایه چه دَ دے نه ښو کړی ښنګه سترګے پټے
دَ خپل پلار، خپلے مور، دَ خپلے خور او رور غمونه

جانانه زهٔ او تهٔ ئے ښنګ دَ یو بله جدا کړو
حالاتو په مونږ ښنګه کړه خپل اور او سکور غمونه

په سترګو کښ مِ راوُړهٔ تصویرونه دَ خوبونو
جانانه مالــه را زمــا دَ ســترګو تــور غمونـه

لوګے کهٔ پکښ ځان ته دَ سائل دَ ژوند ګلونه
**سائل** ته بلوه دَ خپل ښائست دَ اور غمونه

# دَ بخت روان یاد

ملګــرے وۀ زمــا بخــت روان لکــه جانــان
پــه زړۀ مِ راتــه پــاتے شــو ارمــان لکــه جانــان

زۀ پریښودم په نیمه لار کښ شومره خلقو
خو دے خو نۀ وۀ ناست چه شو روان لکه جانان
جــذبے ئــے لیــونئے وے دَ خبــرو لیــونے وۀ
محفــل بــه ئــے ســاتلے وۀ ودان لکــه جانــان
معصــوم وۀ بــلا وګــے وۀ دَ میــنے دَ خبــرو
هوښیار وۀ خو لیدے به شو نادان لکه جانان
مئــین وۀ دَ ســپرلو او دَ ګلونــو دَ ســندرو
هر وخت او په هر حال کښ وۀ خندان لکه جانان
په مرګ مِ هم دَ زړۀ نه تلے نۀ دے نۀ به لاړ شی
ګنــړلے وۀ مــا هــر کلــه خپــل ځــان لکــه جانــان

ځــۀ لــګ مِ راتــول کــړی وۀ دَ زړۀ بــاغی دړدونــه
**سـائل** ئــے کــۀ بے وختــه پریشــان لکــه جانــان

۞۞۞

## دَ سائل نور چاپ کتابونه

| | | |
|---|---|---|
| 1. | دَ ویر په چم کښں وار دَ نغمو دے | شاعری |
| 2. | دَ لمبو په سیوری | شاعری |
| 3. | دَ ښائستونو دَ سپرلی بادونه | شاعری |
| 4. | دَ وینو رنګ په لمبو ځنګه ښکاری؟ | شاعری |
| 5. | تاله تصویر په ګلاب جوړ کم کۀ نۀ؟ | شاعری |
| 6. | دړد چه دَ ځړیکو ځانګے وسپړلے | شاعری |
| 7. | دَ چینارونو نه لمبے اووتے | شاعری |
| 8. | حالات چه اور وروی | شاعری |
| 9. | تا به په خپل تصویر کښں څوک ځایوی | شاعری |
| 10. | زۀ دَ خزان دَ پاڼړے پاڼړے سره اورژیدم | شاعری |
| 11. | ستا خبرے دَ سندرو سرنامے دی | شاعری |
| 12. | اخری سندره | افسانے |
| 13. | دَ باچا خان د افکارو معنوی تصویرونه | نثر |
| 14. | غرمے لمبے لمبے | شاعری |
| 15. | یه زړۀ ګورئے دلته به ګل نۀ سپړے | شاعری |

## ناچاپ کتابونه

| | | |
|---|---|---|
| 1. | تپه کۀ ستائینه | نثر |
| 2. | هر تصویر زما تصویر | نثر |
| 3. | دَ ثقافت تاریخی بنیادونه | نثر |
| 4. | په فی المیزان کښں دَ هیواد معنوی اړخونه | نثر |

یوه ډیوه یوه شغله وه دَ طوفانه پاتے
بله مِ یوه اشاره وه دَ جانانه پاتے
تۀ وخت په بله یوړے زۀ حالاتو لا په بله
دا څۀ قیامت شو زۀ شوم ستا نه تۀ زما نه پاتے
ناست یم ګنډم پرے ستا زړۀ ریښے ریښے لوپته
یو څو تارونه مِ راټول کړۀ دَ ګریوانه پاتے
جانانه دا سے شوه دَ مینے دَ پښتو قات سالی
زۀ شوم دَ لیک نه پاتے ته شوے دَ عنوانه پاتے
دا په لمبو چه مو هم تنده دَ سپرلی ماتیږی
دا دی رنګونه دَ ګلونو دَ خندا نه پاتے
ستا دَ نظر دَ لاس ګلونه پرے سیراب ساتمه
زۀ یوه اوښکه ستا دَ سترګو دَ بارانه پاتے
چه دَ سائل سندرے وی سپرلی به څنګه نه وی
هر څو کۀ یو رنګ دلته نه دے دَ خزانه پاتے